

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




# اسلامي ښوونه او روزنه

## لسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ .ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي زده کړو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلند کیږي.

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپيڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# د موضوعاتو فهرست

## د عقایدو برخه

لومړی لوست

# د عقایدو علم

**شرعي احکام په عمومي ډول په دوو برخو وېشل شوي دي**

**۱- عملي احکام:** هغه دي چې د اعمالو په کیفیت پورې اړه لري کوم چې د بدن د غړو په واسطه سرته رسېږي او فرعي احکام هم ورته ویل کیږي، لکه: د لمانځه فرضیت، د زنا حرام والی او داسې نور.

**۲- اعتقادي احکام:** هغه دي چې عقیدې پورې اړه لري، د زړه اعمال دي، د بدن په ظاهري غړو نه تر سره کیږي او اصلي احکام هم ورته وایې، لکه: د الله تعالی په وجود، وحدانیت، د آخرت په ورځ او داسې نورو باور کول.

د لومړي ډول احکامو علم ته د شریعت احکام او فقهې علم ویل کیږي او دویم ډول علم ته د توحید، صفاتو او عقایدو علم ویل کیږي چې موږ دلته له دغه دویم ډول علـم څخه بحث کوو.

## د عقایدو تعریف

عقاید د عقیدې جمع ده، عقیده په لغت کې کلک تړلو ته وایـې او د اسـلامي علومـو پـه اصطلاح کې په دوو معناوو راغلې ده.

لومړی: د الله تعالی د قدیم ذات په وحدانیت او پر ټولو هغـو لاربـوونو چـې محمـدﷺ د الله تعالی له لوري انسانانو ته رسولي، کلک ایمان او باور لرل.

دویم: هغه قضایا او جملې چې د مؤمن له څیزونو څخه بحث کوي.

**د تعریف شرح**

عقیده کلکو تړلو ته وایې او عقاید په دې نامه سره، ځکه یادیږي چې انسان هـم پـه هغـه څه چې عقیده لري خپل زړه تړي او کلک یقین وربانديې کوي،خو دا یقـین بایـد دومـره غښتلی او پوخ وي چې هېڅ ډول شک او شبهه پکې ځای ونه لري، ځکه عقیده په عربـي ژبه کې پوخوالي او ټینګښت ته وایي، سست باور عقیده نه ګڼل کیږي.

**فعالیت:** لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست او هم د عقیدې د لفظ لومړی او دویمه معنا
یکې وټاکئ:
۱ـ په الله تعالی عقیده لرل څه حکم لري؟
۲ـ تاسې ته عقیده په یوې اونۍ کې څو ساعته تدریس کیږي؟

## د عقایدو د علم موضوع

د عقایدو د علم موضوع د الله تعالی ذات، صفات او د پیغمبر رسالت دی چې په هغه کې په ملایکو، آسماني کتابونو، انبیاوو، د آخرت په ورځ، حساب، جنت، جهنم او د خیر او شر په تقدیر ټولو ایمان لرل شامل دي.

## د عقایدو د علم غرض

د عقایدو د علم غرض او ګټه په دنیا او آخرت کې د انسان بریالیتوب او نیک بختي ده، هغه څوک چې د الله تعالی په کتاب او د هغه د پیغمبر په سنتو په سمه توګه باور ولري او پیروي یې کوي، هیڅکله به نه په دنیا او نه په آخرت کې ناکام شي.
د دې علم په زده کړه د انسان عقیده سمیږي او حقیقتونه د ځان، کایناتو او خپل خالق په هکله په رښتینې بڼه پیژني.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د عقایدو د علم د تعریف، موضوع او غرض په اړه بحث وکړي.

## د عقایدو د علم نومونه

د عقایدو علم په نورو نومونو هم نومول شوی، لکه: د توحید علم، اصول الدین، الفقه الاکبر، الإیمان.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د اسلامي عقیدې د پیژندلو په اړه په خپلو کې سره خبرې وکړي.

## د عقایدو د علم فضیلت او ارزښت

د عقایدو علم له نورو ټولو علومو څخه غوره او د شرف خاوند دی، ځکه د هر علم شرف او فضیلت د هغه علم پر موضوع پورې اړه لري، د عقایدو د علم موضوع له شرف

څخه ډکه موضوع ده چې هغه د الله تعالی ذات، اسماء، صفات، د هغه د وحدانيت، او پر بندګانو باندې د الله تعالی حقونه دي. همدارنګه پر انبياوو او ټولو هغو شيانو باندې علم چې پر آخرت پورې تعلق لري.

## د عقايدو د علم حکم

د عقايدو د علم زده کول فرض عيني او فرض کفايې دي.

**فرض عيني:** په اجمالي ډول پر هر مسلمان نارينه او ښځه باندې فرض عين دي چې په ټولو هغو شيانو باندې عام او مجمل ايمان راوړي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله تعالی له لوري د هغوی خبر ورکړی دی، لکه: په توحيد، رسالت، جنت، دوزخ او د قيامت په ورځ ايمان درلودل او د لمانځه، حج او روژې فرضيت ريښتينی ګڼل او داسې نور.

**فرض کفايې:** په تفصيلي ډول د عقايدو د علم د دلايلو زده کول فرض کفايې دي. د مثال په ډول: په هغو آيتونو او حديثونو باندې ځان پوهول چې توحيد، رسالت، جنت، دوزخ او د قيامت په ورځ ايمان درلودل او د لمانځه، حج او روژې فرضيت يې ثابت کړی وي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د عقايدو د علم د فضيلت او حکم په هکله نورو ته معلومات ورکړي.




١. عقيده د لغت او اصطلاح له مخې تعريف کړئ.
٢. د عقايدو د علم موضوع څه شی ده؟
٣. د عقايدو د علم غرض څه شی ده؟
٤. دعقايدو علم څه اهميت لري؟ بيان يې کړئ.
٥. د عقايدو د علم حکم بيان کړئ.




زده کوونکي دې د علم په اړه يوه مقاله وليکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د الله تعالی پر وجود ایمان

ځمکه، آسمانونه او هغه څه چې په دې دواړو کې موجود دي آیا په خپله پیدا شوي او که داسې ذات وجود لري چې دغه موجودات یې پیدا کړي دي؟

د کایناتو دغه نظم چې هېڅ ګډوډي پکې نه لیدل کېږي او په منظم شکل پر مخ ځي آیا په خپل سر روان دي او که تنظیموونکی لري؟

## د الله تعالی د وجود دلایل

د الله تعالی پر وجود نقلي اوعقلي دلایل شتون لري چې ځینې یې په لاندې توګه بیانېږي:

## لومړی نقلي دلیل

د الله تعالی د وجود د اثبات لپاره په قرآن کریم کې ډېر زیات دلیلونه ذکر شوي، لکه: الله تعالی د البقرې په سورت کې داسې فرمایي: ﴿وَإِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ ۞ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾[البقرة: ۱۶۳- ۱۶۴]

**ژباړه:** او ستاسې معبود یو دی، له هغه پرته بل هېڅ معبود نشته، هغه ډېر مهربان او خورا بښونکی دی. د آسمانونو او ځمکې په پیدایښت، د شپې او ورځې په اوړېدو را اوړېدو او په هغو بېړیو کې چې خلکو ته د ګټې وړ شیانو وړلو راوړلو لپاره په سمندر کې روانېږي او په هغو اوبو کې چې الله تعالی له آسمانه نازلې کړي دي، بیا یې په هغو سره مړه ځمکه را ژوندۍ کوي او په ځمکه کې یې هر راز ساکښ موجودات خواره کړي دي او د بادونو په لګېدو او د آسمان او ځمکې تر منځ په اېل کړی شوې وریځ کې د هغو خلکو لپاره د قدرت نښې نښانې دي چې له پوهې نه کار اخلي.

## له پورتنیو مبارکو آیتونو څخه د استدلال طریقه

دا آیتونه صراحتاً دلالت کوي چې ستاسې معبود یو دی، په رحمن او رحیم سره یې ستایلی دی او د یووالي لپاره یې د مخلوقاتو څخه ډول ډول دلیلونه بیان کړي دي، دا

ټوله هستي چې د کوم نظم او قانون څخه پیروي کوي د دې هرو مرو ناظم او چلوونکی شته، که نه، نو هر څه به ګډوډ وای.
نو پورتني آیتونه، لکه: څرنګه چې نقلي دلیل حسابیږي همدا ډول عقلي دلیل هم ګڼل کیږي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د الله تعالی پر وجود باندې نور نقلي دلیلونه هم ذکر کړي.

## د الله تعالی پر وجود باندې عقلي دلیل

ډېر زیات عقلي دلایل شته چې د الله تعالی پر وجود دلالت کوي، د بېلګې په توګه: هغه واقعه چې د امام ابوحنیفه (رح) او دهري تر منځ پېښه شوې وه، د الله تعالی د وجود د اثبات لپاره تر ټولو غوره دلیل دی: له دهریانو څخه څو کسه امام ابو حنیفة (رح) ته راغلل او له ده څخه یې د الله تعالی د وجود په اړه پوښتنه وکړه، (د دوی نیت د امام ابو حنیفه (رح) په شک کې اچول وو) امام ابوحنیفه (رح) ورته وویل: زه په یوه ډېر حیرانوونکي کار بوخت یم. دوی وپوښتل هغه څه کار دی؟ ابو حنیفه (رح) ورته وویل: چا راته وویل: دلته یوه کښتۍ ده چې هېڅوک پکې نشته، په خپله په سیند کې چلېږي، د سیند په غاړه درېږي، په خپله سامان باروي، بیا په خپله سیده نورو ښارونو ته ځان رسوي، هلته خپل سامانونه په خپله کښته کوي، هر شی، لکه: خرما، جامې او داسې نور توکي بېل بېل له خپلو همجنسو توکو سره ځای پر ځای کوي، هېڅ شی یو له بل سره نه ترې ګډېږي، سره له دې چې په دې کې هېڅوک نشته، نه څوک شته چې هغه وچلوي او نه څوک شته چې هغې ته لارښوونه وکړي.
دوی وویل: نو آیا ته دا خبره منې؟ دا خبره، خو له لېوني پرته بل څوک نه قبلوي، ځکه کښتۍ له لرګي څخه جوړه شوې ده، نو څرنګه به لرګی په خپله حرکت وکړي؟ څرنګه به په خپله وچلېږي؟ څرنګه به په خپله سامان بار کړي؟ په دې وخت کې امام ابو حنیفه (رح) دوی ته وویل: تاسې شخړه کوئ، په داسې حال کې چې تاسې په خپلو سترګو باندې دغه کاینات وینئ، دغه ستوري چې حرکت کوي چا پیدا کړي؟ لمر او سپوږمۍ ته په دغه منظم ډول څوک حرکت ورکوي؟ دغه مخلوق چا په ځمکه کې خور کړی

دی؟ دغه وربځ چا پیدا کړې ده؟ په پای کې دهري په پړ کېدو سره له نور بحث نه تېر شو او توبه يې وايستله.

همدارنګه نور ډېر عقلي دليلونه شته چې د الله تعالی پر وجود دلالت کوي او هر څه چې الله تعالی پيدا کړي د هغه پر وجود باندې دليلونه دي کله چې انسان په دغو مخلوقاتو کې فکر او سوچ وکړي، نو وايي: ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾ [آل عمران: ۱۹۱] **ژباړه:** ای زموږ پالونکيه (ربه)! دا مخلوقات تا عبث (بې حکمته او بې ګټې) نه دي پيدا کړي، پاکي ده تا لره (له ټولو عيبونو څخه) نو وساته موږ د دوزخ له اور څخه.

## د الله تعالی ذات قديم دی

د الله تعالی ذات قديم دی، همېشه و او همېشه به وي، د ده د وجود ابتداء نشته، په دې اړه الله تعالی فرمايي: ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ﴾ [الحديد: ۳] **ژباړه:** همغه لومړی هم دی او وروستی هم. يعنې الله تعالی اول دی ابتداء نه لري او آخر دی انتهاء (پای) نه لري.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د الله تعالی پر وجود باندې نور عقلي دليلونه بيان کړي.

## د الله تعالی پر وجود د ايمان حکم

د الله تعالی پر وجود ايمان (باور او يقين) لرل فرض دي که څوک د الله تعالی له وجود څخه منکر شي کافر دی.




۱. د کايناتو له شتون څخه د خالق پر وجود څنګه دليل نيسئ؟
۲. د الله تعالی پر وجود باندې يو نقلي دليل ذکر کړئ.
۳. د الله تعالی پر وجود باندې يو عقلي دليل ذکر کړئ.
۴. په الله تعالی باندې ايمان څه حکم لري؟


کورنی دنده

زده کوونکي دې د الله تعالی د وجود په اړه يوه مقاله وليکي.

دریم لوست

# د الله تعالی وحدانیت (یو والی)

د ټولو مخلوقاتو پیدا کوونکی یوازې الله تعالی دی. په ذات، نومونو او صفاتو کې شریك او ساری نه لري، د هېڅ مرستې ته اړ ندی، بلکې ټول مخلوقات ده ته اړ او محتاج دي.

## د توحید تعریف

توحید یو ګڼلو ته وایي او په اصطلاح کې د الله تعالی یو ګڼل توحید بلل کېږي.[۱]

## د تعریف شرح

د الله تعالی توحید دا معنا لري چې الله تعالی په ذات او صفاتو کې ځانګړی دی او له هغه سره ساری او شریك نشته.

## د توحید ډولونه

د الله تعالی توحید په درې ډوله دی:

د ربوبیت توحید.

د الوهیت توحید.

د نومونو او صفاتو توحید.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د الله تعالی د توحید په هکله یو له بل سره خبرې وکړي.

## د ربوبیت توحید

د ربوبیت توحید په دې عقیده لرل دي چې د مخلوقاتو پیداکوونکی، رزق ورکوونکی، تدبیر نیوونکی، عزت او ذلت ورکوونکی، خیر او شر رسوونکی او په ټولو مخلوقاتو کې له اسبابو پرته متصرف او واکدار یوازې یو الله تعالی دی.

نو یوازې الله تعالی خالق او مالك دی. له اسبابو پورته مرسته یوازې له الله تعالی څخه غوښتل کېږي، په ټول عالم کې یوازې الله تعالی له اسبابو پرته تصرف کوي، مخلوقات په خلقت او پایښت کې ټول الله تعالی ته محتاج دي، الله تعالی د عالم د نظام په چلولو کې د هېڅا مرستې ته اړتیا نه لري.

۱ - شرح العقیدة الطحاویة - - (۱ / ۸)

### د ربوبیت د توحید د اثبات دلیلونه

الله ﷻ فرمایلي دي: ﴿اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ﴾ [الزمر: ٦٢] **ژباړه:** الله تعالی د هر شي هستوونکی دی، هماغه د هر شي کار ساز او چلوونکی دی.

همدا راز فرمايي: ﴿وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا﴾ [الإسراء: ١١١] **ژباړه:** او ووایه ټوله ثنا او ستاینه هغه خدای لره ده چې هغه نه څوک په زوی ولی سره نیولی، نه په پادشاهی کې څوک شریک ورسره شته، نه یې د بې وسی له امله ملا تړی شته او پوره لويي يې بيان کړه.

د ربوبیت د توحید غوښتنه دا ده چې باید هر ډول عبادت، زاري اوفریاد، د مرستې آواز، ټول دنیوي او اخروي حاجتونه له الله تعالی څخه وغوښتل شي، ورسره د نورو متصرفینو او مرستندویانو له نیولو څخه په کلکه ډډه وشي، ځکه چې یوازې الله تعالی د هر ډول عبادت اوبندگی لایق دی.

همدارنگه الله تعالی فرمايي: ﴿وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [الأنعام: ١٧] **ژباړه:** که الله تاته کوم تکلیف در ورسوي، نو له هغه نه پرته بل څوک نشته چې تا له تکلیف څخه وژغوري، که هغه ذات تا ته کومه ښیگڼه او گټه در واړوي، نوهغه په هر څه قادر ذات دی.

په بل ځای کې فرمايي: ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ﴾ [البقرة: ١٨٦] **ژباړه:** او ای پیغمبره! زما بندگان که له تا نه زما په اړه پوښتنه وکړي، نوهغوی ته ووایه چې زه ورته ډېر نژدې یم، بلونکی چې کله ما وبلي زه د هغه بلنه اورم، نو هغوی ته ښايي چې زما بلنې ته لبیک ووايي، او پر ما ایمان راوړي، ته دا خبره هغوی ته واوروه، کېدای شي چې هغوی سمه لار ومومي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د ربوبیت د توحید د اثبات په اړه عقلي دلیلونه بیان کړي.




١. توحید تعریف کړئ!
٢. توحید په څو ډوله دی؟
٣. د ربوبیت له توحید څخه مراد څه دی؟
٤. د ربوبیت پر توحید باندې نقلي دلیل ذکر کړئ.

شلورم لوست

# د الوهيت توحيد

- آيا پرته له الله تعالی څخه بل څوك د عبادت وړ شته؟
- بنده بايد له چا څخه مرسته وغواړي؟
- چا ته د عجز سر ښکته کړي؟

## د الوهيت تعريف

اله معبود ته وايي. الوهيت مصدر او د الله تعالی صفت دی، د الوهيت د توحيد معنا دا ده چې يوازې الله تعالی معبود دی او په معبوديت کې شريك نه لري.

## د تعريف شرح

د عبادت وړ يوازې الله تعالی دی. يوازې الله تعالی ته بايد د عجز سر ښکته شي، امر يې ومنل شي او له منهياتو څخه يې ځان وژغورل شي چې دا په حقيقت کې د الوهيت توحيد دی او د عبادت توحيد هم ورته وايي.

## د الوهيت توحيد

د الوهيت توحيد په دې باندې عقيده لرلو ته وايي چې يوازې الله تعالی د عبادت وړ دی.
عبادت په شرعي اصطلاح کې په دوو معناوو راغلی دی.

١. په خاصه معنا: عبادت په خاصه معنا سره له لمانځه، روژې، زکات او حج څخه عبارت دی او همدارنگه نورې هغه چارې چې موخه ورڅخه يوازې د الله تعالی امر پر ځای کول وي او عادتي چارو پورې اړه ونه لري هم د عبادت په مفهوم کې داخلې دي.
٢. په عامه معنا: عبادت په عامه معنا سره دې ته ويل کېږي چې د ژوند په ټولو ډگرونو کې يوازې د الله تعالی امر ومنل شي، که هغه عبادت په خاصه معنا سره وي، که معاملات وي، که دکورني ژوند احکام وي او که پر امنيت، سياست او اقتصاد پورې تړلي احکام وي.

يو انسان هلته موحد گڼل کېږي چې د ژوند په ټولو ډگرونو کې د الله تعالی اطاعت وکړي او ټول هغه عادتونه او نظريات چې د اسلام له سپېڅلي دين سره مخالف وي رد کړي.

## د الوهيت د توحيد د اثبات دليلونه

په قرآن کريم او سنتو کې د الوهيت په توحيد باندې بې شمېره دليلونه شته چې يو څو يې په لاندې توګه بيانيږي.

**قرآن کريم:** الله تعالى په قرآن کريم کې فرمايي: ﴿اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ [البقرة: ٢٥٥] **ژباړه:** له الله، (هغه) ژوندي ابدي ذات پرته چې ټول کائنات يې تنظيم کړي دي، بل هېڅ خداى نشته.

په يو بل مبارک آيت کې الله تعالى فرمايي: ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ﴾ [الكهف:١١٠] ژباړه: اې پيغمبره! ووايه چې زه يوازې ستاسو په څېر انسان يم، او ما ته وحې شوې چې ستاسې معبود يو الله (ج) دى.

الله تعالى د الاخلاص په سورت کې فرمايي: ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۞ اللَّهُ الصَّمَدُ﴾ [الإخلاص: ١، ٢]

**ژباړه:** اې پيغمبره! ووايه چې الله تعالى يو دى، الله تعالى بې نيازه دى چا ته اړ ندى.

همدارنګه الله تعالى په يو بل آيت کې فرمايلي دي: ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى﴾ [البقرة: ٢٥٦]

**ژباړه:** د دين په چارو کې څه زور او مجبورول نشته، سمه خبره له غلطو مفکورو څخه جلا کړاى شوې ده، اوس چې څوک له کوم طاغوت نه منکر شي او پر الله ايمان راوړي هغه يوه داسې کلکه اسره ونيوله چې هېڅکله ماتېدونکې نه ده.

**د طاغوت تعريف:** طاغوت هغه چا ته ويل کيږي چې د الله تعالى په مقابل کې يې پيروي کيږي، که هغه انسان وي او که بتان.

په يوه حديث شريف کې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: عَنْ عَدِيِّ بن حَاتِمٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي عُنُقِي صَلِيبٌ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ: "يَا عَدِيُّ اطْرَحْ هَذَا الْوَثَنَ مِنْ عُنُقِكَ"، فَطَرَحْتُهُ، فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَقْرَأُ سُورَةَ بَرَاءَةٍ، فَقَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ: ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾[التوبه:٣١] حَتَّى فَرَغَ مِنْهَا، فَقُلْتُ: إِنَّا لَسْنَا نَعْبُدُهُمْ، فَقَالَ: "أَلَيْسَ يُحَرِّمُونَ مَا أَحَلَّ اللَّهُ فَتُحَرِّمُونَهُ وَيُحِلُّونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ، فَتَسْتَحِلُّونَهُ؟"قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: "فَتِلْكَ عِبَادَتُهُمْ"[1] **ژباړه:** عدي بن حاتم رضي الله تعالى عنه وايي چې زه رسول الله صلى الله عليه

---

١ المعجم الكبير للطبراني – (١٢ / ٧)

وسلم ته راغلم او زما په غاړه کې له سرو زرو څخه جوړ شوی صلیب ځوړند و، رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل: ای عدي! له غاړې څخه دې دغه بت ایسته کړه ما هغه بوت ایسته کړ، وروسته بیا زه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغلم چې ده مبارك د براءت مبارك سورت تلاوت کاوه، نو دا آیت یې تلاوت کړ: (( دوی خپل عالمان او روحانیون له الله [ج] پرته خپل (خدایان) نیولي دي)) کله چې له تلاوت څخه فارغ شو، نو ما ورڅخه پوښتنه وکړه او ومې ویل: موږ خو د دوی عبادت نه کولو؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آیا دوی به د الله تعالی حرام کړي شیان نه حرامول، تاسو به هغه شیان حرام ګڼل؟ دوی به د الله تعالی حرام کړي شیان نه حلالول چې بیا به تاسو هغه حلال ګڼل؟ ما ورته وویل همداسې خو وو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: همدا د دوی عبادت کول دي.

**حدیث شریف:** د الله تعالی د الوهیت په توحید باندې په ډېر زیات شمېر مبارك احادیث دلالت کوي چې د هغو له جملې څخه موږ دلته د جابر بن عبد الله ﷺ روایت شوی حدیث ذکر کوو: رسول الله ﷺ په حج کې تلبیه په لوړ آواز ییل کړه: « لَبَّيْكَ، اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ، وَالنِّعْمَةَ لَكَ، وَالْمُلْكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ ». **ژباړه:** په طاعت ولاړ یم تاته، اې الله [ج] په هغه څه کې چې تا پر موږ نازل کړي، ستا اطاعت کوو، ای هغه ذاته چې شریک او ساری نه لرې ستا اطاعت کوو، یقیناً چې ټولې ستاینې او نعمتونه یوازې تا لره دي او پاچاهي هم یوازې ستا ده، نشته شریک او سیال تا لره.

په همدې حدیث شریف کې جابر بن عبد الله ﷺوایې: کله چې رسول الله ﷺ د صفا غونډۍ ته وخوت، مخ یې کعبې ته کړ، داسې یې وفرمایل: «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ، أَنْجَزَ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ »[1] **ژباړه:** له الله تعالی پرته بل برحق معبود نشته، الله یو دی شریک نه لري، د عالم پاچاهي یوازې ده لره ده، غوره صفتونه ټول ده لره دي او دی په هر څه توانمن دی. له الله تعالی پرته بل برحق معبود نشته، هغه یو دی، خپله وعده یې پوره کړه (د مکې په فتحه کې، د کفارو په ماتولو او داسې نورو کې) یې د خپل بنده مرسته وکړه او په یوازې ذات یې کفري لښکرو ته ماتې ورکړه.

---

١ - صحیح مسلم.

**عقلي دليل:** هرهغه څوك چې د الله تعالی پـه ربوبیـت بـاور لـري او وایـي چې یـوازې الله تعالی د دې مخلوق پیدا کوونکی او تدبیر کوونکی دی، بل هېڅوك نـه شـي کـولای چې څه شی پیدا کړي، یا چا ته ګټه او یا زیان ورسوي، نو لازمه ده چې په دې هم اقـرار وکړي چې یوازې همدغه ذات د بندګۍ مستحق هم دی، باید یـوازې د ده بنـدګي وشـي او یوازې د ده شکر ادا شي، د شیانو په تحلیل او تحریم کې یوازې د ده اوامـرو تـه غـاړه کېښودل شي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د الوهیت د توحید په هکله څو نور دلیلونه ذکر کړي.

## د الوهیت د توحید حکم

د الله تعالی د الوهیت په توحید باندې ایمان او باور لرل فرض او منکر یې کافر دی.




۱. الوهیت تعریف کړئ!
۲. د الوهیت توحید څه ته وایي؟
۳. د الله تعالی د الوهیت د توحید لپاره دلیلونه ذکر کړئ!
٤. طاغوت تعریف کړئ.
٥. د الله تعالی د الوهیت د توحید حکم څه دی؟




زده کوونکي دې د الله تعالی د الوهیت د توحید په اړه یوه مقاله ولیکي.

پنځم لوست

# د الله تعالی نومونه او صفات

الله تعالی د ښکلو نومونو خاوند دی، د الله تعالی په نومونو باندې په اجمالي توګه باور درلودل، د اسلامي عقیدې برخه ده او که څوك په تفصیلي توګه وربانـدې وپوهېږي، الفاظ یې یاد کړي او په معنا یې ځان پوه کړي، نو د ستر اجر وړ ګرځي.

## د نومونو او صفاتو تعریف

اسماء د اسم جمع ده، اسم نوم ته وایي، د الله تعالی اسماء هر هغه لفظ ته ویل کېږي چې په قرآن کریم او سنتو کې یې یادونه شوې وي او د الله تعالی په ذات دلالت وکړي، لکه: رحمان، رحیم، غفور، ودود او داسې نور.

صفات د صفت جمع ده، د الله تعالی صفات هغه د کمال معاني دي چې الله تعالی خپل ځان په قرآن کریم کې وربانديې ستایلی او د الله رسول په هغو، په خپلو وینـاوو سره موصوف کړی وي، لکه: د علم، قدرت او ارادې صفتونه.

## د نومونو ډولونه

د الله تعالی نومونه په دوه ډوله دي:

۱ـ ذاتي نوم چې یوازې د الله تعالی په ذات دلالت کوي، هغه د (الله) کلمه ده.

۲ـ صفتي نومونه چې د الله تعالی په ذات او صفت دواړو دلالت کوي، لکه: قادر، علیم، حکیم، سمیع او بصیر.

## د صفتي نومونو او صفاتو تر منځ توپیر

د الله تعالی صفتي نومونه د هغه له صفاتو سره په معنا او شمېر کې توپیر لري:

**لومړی:** په معنا کې توپیر: لکه: پورته چې بیان شو صفتي نومونه د الله تعالی په ذات دلالت کوي سره له یو صفته، ځکه دا هر یو نوم د الله تعالی په ذات او په هغه پورې په قایم یو صفت دلالت کوي چې قادر په قدرت، علیم په علم، حکیم په حکمت، سمیع په سمع او بصیر په بصر د الله تعالی له ذات سره یو ځای دلالت کوي، نو صفتي نوم په ذات او صفت دواړو دلالت کوي او صفت په یو څیزدلالت کوي.

**دويم** په شمېر کې توپير: د الله تعالی صفات د هغه له نومونو څخه زيات دي، ځکه هر صفتي نوم يو صفت په ځان کې لري، ځيني صفات د الله تعالی په افعالو پورې اړه لري، د افعالو نهايت او پای نشته، د بېلګې په توګه: اخذ ( نيول)، تسخير (تابعدار ګرځول)، امساك (بندول) او بطش (راګيرول، او حمله کول) او داسې نور د الله تعالی صفتونه دي، ځکه دا افعال په قرآن کريم کې الله تعالی ته ثابت دي،[1] خو الله تعالی ته موږ د دې صفاتو پر بنسټ د آخِذ، مُسَخِّرْ، مُمْسِكْ او باطِشْ نومونه نه شو ايښودلی، ځکه د الله تعالی اسماء توقيفي دي، له ځانه ځوك نوم نه شي ورته ايښودلای.

## د الله تعالی د نومونو د اثبات دلايل

الله تعالی د ښو نومونو خاوند دی، د اثبات لپاره يې په قرآن کريم او نبوي احاديثو کې ډېر زيات دلايل شته چې په لنډ ډول دلته ځيني له هغو څخه ذکر کيږي.

### قرآن کريم

الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايي: ﴿وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ [الأعراف: ١٨٠]

**ژباړه:** او د الله تعالی ډېر ښه نومونه دي، نو په هماغو يې و بولئ، هغه خلك پرېږدئ چې د ده په نومونو کې کږوالی کوي، دوی چې څه کوي د هغو بدله به مومي.

الله تعالی په بل مبارك آيت کې فرمايي: ﴿ قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ﴾ [الإسراء: ١١٠] **ژباړه:** ورته ووايه: الله را وبولئ يا رحمان، هر يو چې رابولئ، نو د (الله) هغه ډېر ښه ښه نومونه دي.

دغه مبارك آيت دا په ډاګه کوي چې د الله تعالی نومونه ثابت دي او ټول په يوه الله تعالی دلالت کوي.

### حديث شريف

په يوه مبارك حديث شريف کې داسې راغلي دي: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: «اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقَدْ سَأَلَ اللَّهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى وَإِذَا دُعِيَ

---

١ الله تعالی فرمايی: ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ﴾ (البقرة : ٦٣)، ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَنْ تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ﴾ (الحج : ٦٥)، ﴿يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ إِنَّا مُنْتَقِمُونَ﴾ (الدخان: ١٦).

بِهِ أَجَابَ» [1] **ژباړه:** رسول الله ﷺ له يوه سړي څخه واورېدل چې ويل يې: يا الله زه له تا څخه سوال كوم، ځكه ته الله يې، يو يې، بې نيازه يې، هغه ذات چې هېڅوك يې نه دي زيږولي، او نه خو له چا زيږېدلی او نه يې څوك سيال شته. د دې خبرو له اورېدو وروسته نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يقيناً چې دغه سړي لـه الله تعالى څخه د ده په هغه لوی نامه سره سوال وكړ چې كه په دغه نوم سره سوال ورڅخه وشي وركوي يې او كه غوښتنه ترې وشي قبلوي يې.

**فعاليت**

زده كوونكي دې د قرآن كريم ځينې هغه آيتونه ذكر كړي چې د الله تعالى نومونه پكې ذكر شوي دي.

## د الله تعالى د نومونو حكم

د الله تعالى په ټولو هغو نومونو چې په قرآن كريم او يا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مباركو صحيحو احاديثو كې راغلي دي، ايمان راوړل فرض دي.

## د الله تعالى د نومونو او صفاتو په هكله د اهل سنت او جماعت تګلاره

په دې هكله دوه مطلبونه د بيان وړ دي.

۱ـ اهل سنت والجماعت ټول هغه نومونه او صفات چې الله تعالى ځان ته ثابت كړي يا پيغمبر صلى الله عليه وسلم ورباندې ستايلی، الله تعالى ته ثابت ګڼي، هيڅ ډول تعطيل، تحريف، تمثيل او تكييف نه پكې كوي، په دې توګه چې معطل او بې معنا يې نه ګڼي، معناوې يې بل لور ته نه اړوي، مثالونه نه ورته بيانوي او له څرنګوالي څخه يې خبرې نه كوي.

الله تعالى فرمايي: ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ [الشورى: ۱۱] **ژباړه:** د هغه په څېر هېڅ شی نشته او هغه اورېدونكی او ليدونكی دی. د دې آيت په لومړۍ برخه كې تمثيل او تكييف او په دويمه برخه كې يې تعطيل او تحريف نفي شوی دی.

**فعاليت:** زده كوونكي دې د الله تعالى د نومونو او صفاتو په هكله د اهل سنت و الجماعت تګلاره بيان كړي او له پورتني آيت څخه دې د استدلال طريقه ذكر كړي.

---

۱ – رواه احمد في مسنده.

۲ـ د الله تعالی نومونه توقيفي دي، په دې توګه چې ټول له قرآن کریم او حدیثونو څخه اخیستل شوي، څوك نشي کولای چې الله تعالی ته له ځانه نوم کېږدي، البته د الله تعالی د نومونو ژباړه نورو ژبو ته علما د خلکو د پوهې لپاره روا بولي، لکه: رب ته چې په پښتو کې څښتن او په فارسي کې خدا ویل کېږي، نو په عقل سره الله تعالی ته نوم نشي ایښودل کېدای ځکه الله تعالی فرمايلي: ﴿ قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالإِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَاناً وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لا تَعْلَمُونَ ﴾ [الأعراف: ۳۳]

**ژباړه**: ورته ووایه: زما رب خو ښکاره او پټ بې حیا کارونه حرام کړي، ګناه، په ناحقه تېری، دا چې له الله سره هغه څه شریك و ګڼئ چې د هغه په هکله یې څه سند نه دی را نازل کړی او دا چې په الله پورې داسې څه ووایئ چې تاسې پرې نه پوهیږئ.

د الله ﷻ پر نومونو او صفاتو ځان پوهول له بندګانو سره د الله ﷻ په پېژندلو کې مرسته کوي، او همدارنګه له الله ﷻ سره د مینې او تقوا د زیات والي لامل کېږي.




۱. د نومونو او صفاتو تعریف بیان کړئ.
۲. د الله تعالی نومونه په څو ډوله دي؟
۳. آیا د الله تعالی د نومونو او صفاتو تر منځ توپیر شته؟
٤. د الله تعالی د نومونو د اثبات دلایل بیان کړئ.
۵. د الله تعالی د نومونو حکم بیان کړئ.
٦. د الله تعالی د نومونو په هکله د اهل سنت و الجماعت تګلاره بیان کړئ.



### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د قرآن کریم ځینې هغه آیتونه ولیکي چې په هغې کې د الله تعالی نومونه ذکر شوي دي.

# د الله تعالی د نومونو شمېر او د صفتونو ډولونه

په تېر لوست کې مو د الله تعالی د نومونو او صفاتو د تعریف او د اثبات د دلایلو په اړه یو څه زده کړل. په دې لوست کې د الله تعالی د نومونو د شمېر او صفاتو د ډولونو په اړه معلومات ترلاسه کوو.

## د الله تعالی د نومونو شمېر

د الله تعالی د نومونو یادونه په قرآن کریم او نبوي حدیثوکې شوې ده:

- **قرآن کریم:** الله تعالی فرمايي: ﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ ۞ هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۞ هُوَ اللَّهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ۞﴾ [الحشر: ٢٢ - ٢٤]

**ژباړه:** الله ج هغه ذات دی چې له هغه پرته بل هېڅ معبود برحق نشته، په پټه او په ښکاره هر څه باندې پوهېدونکی، همغه رحمن او رحیم دی. الله هغه ذات دی چې له هغه پرته کوم معبود برحق نشته، هغه باچا دی، ډېر مقدس، له ټولو عیبونو څخه سالم، امان ورکوونکی، ساتونکی، په ټولو برلاسی. په زوره د خپل حکم نا فذوونکی او د لویۍ څښتن، لویې کوونکی، پاک دی الله له هغه شرک نه چې خلک يې کوي، الله هغه ذات دی چې د هستونې پلان جوړوونکی د هغه نافذوونکی او د هغه سره سم صورت جوړوونکی دی، د هغه ډېر غوره نومونه دي هر څه چې په آسمانونو او ځمکه کې دي، د هغه په پاکۍ سره ستاینه کوي او هغه برلاسی او حکمت والا دی.

**فعالیت:** په پورتنیو آیتونو کې د الله تعالی ذکر شوي نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**حديث شريف:** په حديث شريف کې راغلي: **عن ابي هريرة أن النبي صلى الله عليه وسلم قال:** ( **إن لله تسعة وتسعين اسماً –مائة إلا واحداً– من أحصاها دخل الجنة**[1]) ژباړه: يقينا د الله تعالى (۹۹) نهه نوي نومونه دي، ـ يو کم سل ـ چا چې وشمارل (حفظ يې کړل) جنت ته به ننوزي.

ځينو پوهانو د قرآن کريم په مختلفو برخو کې د الله تعالى ذکر شوي نومونه سره راټول کړي او همدا نه نوي ورځخه جوړ شوي دي.

خو سمه وينا داده چې د الله تعالى نومونه په نه نوي کې منحصر نه دي، بلکې د الله تعالى نومونه له دې پرته نور هم ډېر دي.

په حديث شريف کې عبد الله بن مسعود ﷺله رسول الله ﷺڅخه روايت کړی: «**مَا قَالَ عَبْدٌ قَطُّ إِذَا أَصَابَهُ هَمٌّ وَحَزَنٌ اللَّهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ أَمَتِكَ نَاصِيَتِي بِيَدِكَ مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ أَوْ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ أَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي وَنُورَ صَدْرِي وَجِلَاءَ حُزْنِي وَذَهَابَ هَمِّي إِلَّا أَذْهَبَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ هَمَّهُ وَأَبْدَلَهُ مَكَانَ حُزْنِهِ فَرَحًا**»[2]

**ژباړه:** هېڅکله يو بنده چې خواشينتوب يا غم ورته رسيدلی وي دا کلمات نه وايي مګر خفګان او غم يې الله تعالى لرې کوي او پر ځای يې خوښي ورکوي: اې الله زه ستا بنده او ستا د بنده او مينځې زوی يم، زما تندی ستا په لاس کې دی، زما په هکله ستا حکم نافذ اوقضا دې عادلانه ده، زه له تا څخه ستا په هر هغه نامه سوال کوم چې ځان دې پرې نومولی، يا دې په خپل کتاب کې نازل کړی، يا دې خپل کوم مخلوق ته وربښودلی، يا دې د هغه پوهه يوازې له ځان سره په علم غيب کې ساتلې چې ته دا قرآن زما د زړه سپرلی، د سينې رڼا، د خواشينتوب لرې کوونکی او د خفګان له منځه وړونکی وګرځوې.

نو له دې وينا څخه چې رسول الله فرمايي: (او يا دې د هغه پوهه يوازې له ځان سره په علم غيب کې ساتلې)، څرګندېږي چې الله تعالى نور نومونه هم لري چې له ده پرته بل څوک ورباندې نه پوهېږي.

---

۱ متفق عليه، بخاري: ۲۵۸۵ شمېره حديث، مسلم: ۲۶۷۷ شمېره حديث.

۲ د احمد مسند ۷ ټوک ۳۴۱ مخ

## د الله تعالی په نومونو او صفاتو د ایمان گټې

۱ـ د الله تعالی پېژندنه، هغه څوك چې د الله تعالی نومونه او صـفات وپېژنـي، د الله تعـالی په هکله یې معرفت زیاتیږي، په الله تعالی باندې یې ایمان پخیږي، او د توحیـد عقیـده یـې پیاوړې کیږي.

۲ـ په اسماء حسنی سره د الله تعالی ستاینه، په ذکر کې له غوره ډولونو څخه ده: الله تعـالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا﴾ [الاحزاب: ۴۱] اې مؤمنانو! الله یاد کـړئ پـه کثرت سره.

۳ـ له الله تعـالی څخـه د ده د نومونـو پـه وسیله غوښتنه او دعـا کـول، الله تعـالی فرمـایي: ﴿وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا﴾ او الله تعالی لره غوره نومونه دي نو په هغو سره یې راوبولئ.

۴ـ د دنیا او آخرت نېکمرغي.

## د الله تعالی د صفتونو ډولونه

**د الله تعالی صفتونه په دوه ډوله دي:** ۱- ذاتي صفتونه ۲- فعلي صفتونه

**۱- ذاتي صفتونه** هغو صفتونو ته ویل کیږي چې الله تعالی یې په ضد نه موصـوفیږي، دغه صفتونه د الله تعالی له ذات سره لازمي دي او هیڅکله له الله تعالی څخه نـه جـلا کیږي. د الله تعالی ذاتي صفتونه له قدرت، ارادې، سمع، بـصر، علـم، حیـات او کـلام څخه عبارت دي.

**۲- فعلي صفتونه:** هغو صفتونو ته ویل کیږي چې الله تعالی یـې پـه ضـد موصـوفیږي، لکه: رحمت چې ضد یې غضب دی.

د الله تعالی فعلي صفتونه ډېر زیات دي، خو موږ دلته د بېلگې په ډول یو څـو ذکـر کـوو: تخلیق (پیداکول)، ترزیق (رزق ورکول)، احیاء (ژوندي کول)، اعـزاز (عـزت ورکـول) او داسې نور.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د ذاتي او فعلي صفتونو تر منځ توپیر بیان کړي.




۱. د الله تعالی د نومونو شمېر څومره دی؟
۲. د الله تعالی د نومونو په هکله د قرآن کريم څو مبارك آيتونه ذكر كړئ.
۳. د الله تعالی د نومونو په هكله د نبي كريم ﷺ يو مبارك حديث ذكر كړئ.
٤. د الله تعالی په نومونو او صفاتو باندې د ايمان گټې بيان كړئ.
٥. د الله تعالی صفات په څو ډوله دي؟
٦. د الله تعالی ذاتي صفات څو دي؟
۷. د الله تعالی فعلي صفات تعريف كړئ.
۸. د الله تعالی د فعلي صفاتو يو څو مثالونه بيان كړئ.



**كورنۍ دنده**

زده كوونكي دې د الله تعالی د نومونو او صفتونو په اړه يوه مقاله وليكي چې له لسو كرښو كمه نه وي.

# د الله تعالی ذاتي صفتونه (۱)

## قدرت او اراده

- قدرت او اراده د الله تعالی له کومو صفتونو څخه دي؟
- آیا الله تعالی د قدرت او ارادې په ضد سره موصوف کېدای شي؟

### د قدرت تعریف

قدرت له هغه صفت څخه عبارت دی چې له امله یې یو څوک توانیږي چې د خپلې ارادې سره موافق کوم کار تر سره کړي او یا یې پرېږدي.[1]

قدرت د الله تعالی ذاتي صفت دی، الله تعالی په هر څه باندې په خپل ازلي او قدیمي قدرت سره چې د ده ازلي صفت دی، قادر دی. د ده لپاره نوی قدرت نه پیدا کېږي او په ضد سره یې چې عجز دی نه موصوفیږي.

### د قدرت د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي: ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [البقرة: ۱۰۹]

**ژباړه:** یقیناً الله تعالی په هر څه قادر دی.

الله تعالی په یو بل مبارک آیت کې فرمایي: ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا﴾ [فاطر: ٤٤]

**ژباړه:** هېڅ شی د الله تعالی ببوسې کوونکی نه دی، نه په آسمانونو او نه په ځمکه کې، هغه پر هر څه پوهیږي او په هر څه باندې قدرت لري.

### د الله تعالی د قدرت پر صفت د ایمان حکم

د الله تعالی د قدرت پر صفت باندې ایمان راوړل فرض دي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د الله تعالی د قدرت د صفت په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

### ۲ - د ارادې تعریف

د یو کار په پایلو کې له ښه غور او فکر کولو وروسته د هغه کار د کولو او یا پرېښودلو قوي عزم او قصد ته اراده ویل کېږي.[2]

۱ - التعریفات - (۱ / ۲۲۱)
۲ - الفروق اللغویة - (۱ / ۳۵)

اراده او مشيت د الله تعالی ذاتي صفت دی، هېڅ شی د الله تعالی له ارادې پرته نه شي پيدا کېدای، بلکې هر شی که کوچنی وي او که لوی، که خير وي او که شر، ګټه وي او که نقصان، ايمان وي او که کفر او داسې نور ټول د الله تعالی په ارادې سره پيدا کېږي، که ټول مخلوقات يو ډېر واړه شي ته د حرکت ورکولو لپاره را ټول شي، د الله تعالی له ارادې څخه پرته حرکت نشي ورکولای او الله تعالی د دې صفت په ضد سره چې مجبورتيا ده نه موصوفيږي.

## د ارادې د اثبات دلايل

الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايي: ﴿فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ﴾ [البروج: ١٦].

**ژباړه:** الله تعالی ښه سرته رسوونکی د هغه څه دی چې اراده يې وکړي.

الله تعالی په بل مبارک آيت کې فرمايي: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ [البقرة: ١٨٥].

**ژباړه:** الله تعالی تاسې ته د آسانی اراده لري او په تاسې باندې د سختی اراده نه لري.

الله تعالی په يو بل مبارک آيت کې فرمايي: ﴿إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ﴾ [يس: ٨٢] **ژباړه:** هغه خو چې کله د يوه شي اراده کوي، نو د هغه کار همدومره دی چې ورته حکم وکړي چې شه او هغه کيږي.

## عقلي دليل

که چېرې الله تعالی د خپلې ارادې خاوند نه وای، نو بيا خو به د بل چا تر امر لاندې وای او د بل چا تر امر لاندې والی د الله تعالی په حق کې نقص دی او نقص د الله تعالی په حق کې باطل دی، همدارنګه که چېرې الله تعالی د بل چا تر امر لاندې شي، نو بيا په قدرت سره نه موصوفيږي، ځکه قدرت تر هغه شي پورې تعلق نيسي کوم پورې چې اراده تعلق نيسي، نو ثابته شوه چې الله تعالی مريد دی او اراده د الله تعالی ازلي صفت دی.

## د الله تعالی د ارادې په صفت د ايمان حکم

د الله تعالی د ارادې په صفت باندې ايمان راوړل فرض دی.

## د ارادې ډولونه

د اهل سنت و الجماعت علماوو اراده په دوه ډوله وېشلې ده.

**لومړی:** قدري او کوني اراده.

**دويمه:** امري او شرعي اراده.

١. **کوني اراده:** دا اراده د مشيت سره مرادفه ده، ټولو موجوداتو ته شامليږي، نو هر هغه څه چې منځ ته راځي، ټول د الله تعالی په اراده سره پيدا کيږي. دا اراده د الله تعالی په دې قول

سره ثابته شوې ده چې فرمايي: ﴿فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ وَمَنْ يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ﴾ [الأنعام: ١٢٥]

**ژباړه:** چا ته چې الله تعالى د لارښوونې اراده وکړي، د هغه سينه د اسلام لپاره پرانيزي او چا ته چې په ګمراهۍ کې د غورځولو اراده وکړي، د هغه سينه تنګوي او داسې فشار پرې راولي چې (څنګه د اسلام تصور په ذهن کې را ګرځوي نو) داسې ورته معلومېږي ته به وايې په سختۍ سره د آسمان لوري ته خېژي.

همدارنګه الله تعالى فرمايي: ﴿وَلَكِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ﴾ [البقرة: ٢٥٣]

**ژباړه:** خو الله تعالى چې څه غواړي هغه کوي.

٢. **ديني او شرعي اراده:** له دې ارادې سره مينه او رضا لازمه ده، څکه الله تعالى فرمايي: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ [البقرة: ١٨٥]

**ژباړه:** الله تعالى پر تاسې آسانتيا راوستل غواړي، سختي راوستل نه غواړي.

همدارنګه الله تعالى فرمايي: ﴿مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلَكِنْ يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ [المائدة: ٦]

**ژباړه:** الله تعالى نه غواړي چې ژوند درباندې تنګ کړي، هغه خو غواړي چې تاسې پاک او سوتره کړي او خپل نعمت پر تاسې پوره کړي، ښايي چې تاسې شکر ويستونکي شئ.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د ارادې د ډولونو په هکله يو له بل سره خبرې وکړي.




١- قدرت څه ته ويل کېږي؟
٢- د الله تعالى د قدرت د اثبات دلايل ذکر کړئ.
٣- د الله تعالى د قدرت په صفت د ايمان حکم څه دی؟
٤- اراده څه ته ويل کېږي؟
٥- د الله تعالى د ارادې د اثبات دلايل ذکر کړئ.
٦- د الله تعالى د ارادې په صفت د ايمان حکم بيان کړئ.
٧- د الله تعالى اراده په څو ډوله ده؟ بيان يې کړئ.



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د دوو صفتونو (قدرت او ارادې) په اړه يوه مقاله وليکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د الله تعالی ذاتي صفتونه (۲)

## سمع، بصر، علم او حیات

- آیا تاسو پوهیږئ چې سمع، بصر، علم او حیات د الله تعالی صفتونه دي؟
- سمع، بصر، علم او حیات د الله تعالی له کومو صفتونو څخه دي؟
- آیا الله تعالی د نومړو صفتونو پر ضد ستایل کېږي؟

### سمع

### د سمع تعریف

سمع په عربي ژبه کې له هغه قوت څخه عبارت دی چې آوازونه پرې اورېدل کېږي، خو دلته له سمعې څخه د الله تعالی هغه ذاتي صفت مراد دی چې الله تعالی خپل ځان ته په قرآن کریم کې ثابت کړی او موږ یې په کیفیت نه پوهیږو.

سمع د الله تعالی ذاتي صفت دی، الله تعالی ټول آوازونه، په خپلې ازلي سمعې سره چې دده ازلي صفت دی اوري، خو موږ یې په کیفیت نه پوهیږو، ډېر خفي شی هم د الله تعالی له سمعې (اورېدلو) څخه نه شي پټېدلای، الله تعالی د دې صفت په ضد سره چې کوڼوالی دی نه موصوفیږي.

### بصر

### د بصر تعریف

بصر د لیدلو هغه قوت دی چې په سترګو کې وجود لري او په هغه سره شکلونه، رنګونه، روښنایي، تیارې او داسې نور لیدل کېږي، خو دلته له بصر څخه د الله تعالی له هغه ذاتي صفت څخه مراد دی چې الله تعالی په قرآن کریم کې د خپل ځان لپاره ثابت کړی او موږ یې په کیفیت نه پوهیږو.

بصر د الله تعالی ذاتي صفت دی، الله تعالی په خپل ازلي او قدیمي بصر سره چې د ده ازلي صفت دی ټول شکلونه او رنګونه ویني، خو موږ یې په کیفیت نه پوهیږو، د الله تعالی له بصر (لیدلو) څخه ډېر کوچنی شی هم نشي پټېدلای او د دې صفت په ضد سره چې ړوندوالی دی نه ستایل کېږي.

## د سمع او بصر د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي: ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ [الحج: ۷۵] ژباړه: یقیناً الله تعالی اورېدونکی او لېدونکی دی.

همدارنگه الله تعالی په یو بل آیت کې فرمایي: ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ [الشورى: ۱۱] ژباړه: «د کایناتو هېڅ شی هغه ته ورته نشته او هغه اورېدونکی او لېدونکی دی.»

## علم.

### د علم تعریف

علم هغې پوهې ته ویل کېږي چې له واقعیت سره مطابقت ولري.

علم د الله تعالی ذاتي صفت دی، الله تعالی په ټولو موجوداتو باندې عالم دی او د ده له علم څخه دبر واړه شیان هم نشي پټېدلای، بلکې په ښکاره او پټو ټولو شیانو باندې په خپل علم چې د ده ازلي او قدیمي صفت دی عالم دی او د دې صفت په ضد سره چې ناپوهي ده، نه ستایل کېږي.

### د علم د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایلي دي: ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾[لقمان: ۲۳]

**ژباړه:** په باوري ډول الله (ج) د سینو په پټو رازونو پوهېږي. په یو بل آیت کې الله تعالی فرمایي: ﴿وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ﴾ [الأنعام: ۵۹]

**ژباړه:** له هماغه سره د غیبو کلیگانې دي چې له هغه نه پرته بل څوك پرې نه پوهېږي، په وچه او لمده کې چې هر څه دي له ټولو څخه هغه خبر دی، له ونې څخه کومه رالوېدونکې پاڼه داسې نشته چې هغه پرې عالم نه وي. د ځمکې په تږرمو پردو کې کومه دانه داسې نشته چې هغه ورڅخه باخبر نه وي، وچ او لامده ټول په یو روښانه کتاب کې لیکل شویدي.

## ژوند (حیات)

### د ژوند تعریف

ژوند د مرگ ضد دی او حیات د الله تعالی ازلي او ذاتي صفت دی، الله تعالی په خپل ازلي ژوند سره حی (ژوندی) دی او د دې صفت په ضد سره چې مرگ دی نه موصوفېږي.

## د حیات د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایلي دي:﴿اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ [البقرة: ٢٥٥] **ژباړه:** الله، له الله(ج) پرته بل هېڅوک د عبادت وړ نشته، هغه الله(ج) چې ژوندی او د کارونو تنظیموونکی دی.

همدارنګه الله تعالی په یو بل آیت کې فرمايي: ﴿هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ [غافر: ٦٥] **ژباړه:** همغه تل تر تله ژوندی دی، له هغه پرته هېڅ معبود نشته، تاسې همغه وبولئ د هغه لپاره د خپل دین په خالص ګرځولو سره.

## د پورتنیو صفتونو حکم

د الله تعالی د سمع، بصر، علم او ژوند په صفتونو باندې ایمان لرل فرض دي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د الله تعالی د ذاتي صفتونو په هکله په ډله ییزه توګه خبرې وکړي.




١. سمع، بصر، علم او ژوند تعریف کړئ.
٢. د سمع، بصر، علم او ژوند د اثبات دلایل ذکر کړئ.
٣. د سمع، بصر، علم او ژوند د صفتونو حکم بیان کړئ.
٤. سمع، بصر، علم او ژوند د الله تعالی له کومو صفتونو څخه دي؟
٥. آیا الله تعالی د نوموړو صفتونو په ضد سره موصوف کېدای شي؟




زده کوونکي دې د دغو څلورو صفتونو په اړه چې په لوست کې ولوستل شول یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

نهم لوست

# کلام د الله تعالی صفت دی

- آیا تاسو پوهیږئ چې کلام د الله تعالی صفت دی؟
- کلام د الله تعالی له کومو صفتونو څخه دی؟
- آیا الله تعالی د کلام په ضد سره موصوفیږي؟

د دې پوښتنو ځوابونه به په لاندې لوست کې ولولو.

## د کلام تعریف

کلام په عربي ژبه کې هغه څه ته ویل کیږي چې له حروفو او غږونو څخه مرکب شوی وي، خو دلته له کلام څخه د الله تعالی ذاتي صفت مراد دی چې هغه قدیم دی، په څرنګوالي باندې یې موږ نه پوهیږو او نفسي کلام هم ورته ویل کیږي.

## د تعریف شرح

کلام د الله تعالی په ذات پورې قائم دی، په ضد سره یې چې ګونګوالی دی، نه موصوفیږي.

## د کلام د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي: ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَى تَكْلِيمًا﴾ [النساء: ١٦٤].

**ژباړه:** او له موسی (علیه السلام) سره الله تعالی په ځانګړي ډول خبرې وکړې.

همدارنګه په یو بل مبارک آیت کې الله تعالی فرمایي: ﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ إِنَّهُ عَلِيٌّ حَكِيمٌ﴾ [الشورى: ٥١] **ژباړه:** او هیڅ انسان ته دا نشته چې الله ورسره و غږیږي، پرته له دې چې وحې به وي، یا له پردې ها خوا، یا کوم رسول و لیږي او هغه د ده په حکم سره څه چې غواړي وحې کړي، یقیناً هغه لوړ مرتبه حکمت والا دی.

## د کلام په صفت د ایمان حکم

د الله تعالی د کلام پر صفت باندې ایمان راوړل او باور کول فرض دي.

## قرآن کريم د الله تعالی کلام دی

قرآن کريم د الله تعالی کلام دی، الله تعالی د خپلو بندګانو د لارښوونې لپاره رالېږلی دی، قرآن کريم د ټولو آسماني کتابونو وروستنی کتاب دی. له دې کتاب څخه وروسته د قيامت تر ورځې پورې بل کتاب نه نازلېږي.

## د قرآن کريم تعريف

قرآن د لغت له مخې د مصدر کلمه ده، د يو ځای کولو او تلاوت په معنا دی. لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي:﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وقُرْآنَهُ۞ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾ [ القيامة: -١٧- ١٨]

**ژباړه:** بې شکه د هغه جمع کول او پر تا لوستل يې زموږ په ذمه دي، نو کله چې هغه موږ ولوست، بيا يې ته ورپسې لوله.

**په اصطلاح کې:** قرآن کريم د الله تعالی کلام دی، پر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم باندې په عربي ژبه نازل شوی، په صحيفو کې ليکل شوی، موږ ته په پرله پسې، پرته له کومې شبهې څخه را نقل شوی دی، تلاوت يې عبادت ګڼل کېږي، يو سل او څوارلس سورتونه لري.

## په قران کريم باندې د ايمان حکم

په دې باندې يقين او باور کول فرض دي چې قرآن کريم د الله تعالی کلام دی، د ده پر ذات پورې قايم دی، که څوک د قرآن کريم( د الله تعالی د کلام) له قديم والي څخه منکر شي کافر کېږي.

## د قرآن کريم نومونه

قرآن کريم په ډېرو نومونو ياد شوی دی چې ځينې يې په لاندې ډول بيانېږي:

قرآن: الله تعالی فرمايي:﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾[البقرة: ١٨٥] د روژې مياشت هغه ده چې قرآن پکې نازل کړی شوی.

الکتاب: الله تعالی فرمايي: ﴿ ذَلِكَ الكِتَابُ لاَ رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ [البقرة: ١] **ژباړه:** دا هغه کتاب دی چې (هېڅ) شک پکې نشته، د متقيانو لپاره لارښوونه ده.

الحکيم: الله تعالی فرمايي: ﴿ تِلْكَ آيَاتُ الكِتَابِ الحَكِيمِ ﴾ [يونس: ١] **ژباړه:** دا له حکمتونو څخه د يوه ډک کتاب آيتونه دي.

نور: الله تعالى فرمايي: ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُوراً مُّبِينًا﴾ [النساء: ١٧٤]. **ژباړه:** او تاسو ته مو څرګنده رڼا نازله کړي (چې قرآن دی).

الفرقان: الله تعالى فرمايي: ﴿تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الفُرْقَانَ عَلَى عَبْدِهِ لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيراً﴾ [الفرقان ١ آيت] **ژباړه:** هغه ذات برکتناک دی چې فرقان يې د دې لپاره نازل کړ، تر څو د ټولو خلکو لپاره د وېرې خبر ورکوونکى وي.

الروح: الله تعالى فرمايي: ﴿وَكَذَلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحاً مِّنْ أَمْرِنَا﴾ [الشورى: ٥٢].

**ژباړه:** او په همدې توګه موږ تاته هم په خپل امر سره روح راوليږلو.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د قرآن کريم نور نومونه هم ذکر کړي.




١. کلام تعريف کړئ.
٢. د کلام د اثبات دلايل ذکر کړئ.
٣. د کلام پر صفت باندې د ايمان حکم بيان کړئ.
٤. قرآن کريم تعريف کړئ.
٥. د قرآن کريم د قِدم په هکله د اهل سنتو نظر بيان کړئ
٦. پر قرآن کريم باندې د ايمان حکم بيان کړئ.
٧. د قرآن کريم نومونه له دليلونو سره ذکر کړئ.



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د قرآن کريم په اړه يوه مفصله مقاله وليکي.

# پر ملائکو ایمان

په تېرو درسونو کې موږ د الله تعالی پر وجود، وحدانیت، نومونو او صفاتو باندې د ایمان په اړه پوره معلومات تر لاسه کړل، په دې لوست کې په ملائکو، باندې د ایمان په اړه بحث کوو.

**د ملائکو تعریف**

ملائکه د ملك جمع ده، په لغت کې استازي ته ویل کیږي.

د عقایدو د علم په اصطلاح کې ملایکې د الله ﷻ هغه نوراني او لطیف مخلوق دی چې د الله ﷻ له اوامرو څخه سرغړونه نه کوي.

**د تعریف شرح**

ملایکې د الله تعالی له غوره مخلوقاتو څخه دي، له نور څخه پیدا شوې دي، په سترگو نه لیدل کیږي، له ټولو گناهونو څخه پاکې او معصومې دي، په هېڅ صورت د الله تعالی له اوامرو څخه سر غړونه نه کوي، بلکې هر کار چې الله تعالی ورته وفرمایې، هغه تر سره کوي، د نارینه یا ښځینه نسبت نه ورته کېږي، په هر ډول ښکلو شکلونو سره ځانونه جوړولای کولای شي، د اوسېدلو ځای یې آسمانونه دي، له نفسي غوښتنو او شهواتو څخه پاکې دي، خوراك، څښاك او خوب نه کوي.

**د ملایکو د وجود د اثبات دلایل**

د ملایکو وجود او خلقت د قرآن کریم په مبارکو آیتونو او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم پر مبارکو احادیثو ثابت دی:

١. قرآن کریم: الله تعالی د قرآن کریم په مختلفو آیتونو کې د ملایکو یادونه کړې ده، لکه څرنگه چې د النجم سورت کې فرمایي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ لَيُسَمُّونَ الْمَلَائِكَةَ تَسْمِيَةَ الْأُنْثَى﴾ [النجم: ٢٧] **ژباړه:** یقیناً کوم کسان چې آخرت نه مني هغوی په پرښتو باندې د ښځینه معبودانو نومونه ږدي.

الله تعالی په یوه بل مبارك آیت کې فرمایي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا أُولِي أَجْنِحَةٍ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [فاطر: ١] **ژباړه:** ثنا ستاینه د الله لپاره ده چې د آسمانونو او ځمکې جوړوونکی او د پیغام رسوونکو، پرښتو ټاکونکی دی. (داسې پرښتې) چې د هغو دوه دوه، درې درې او څلور څلور وزرونه دي، د هغه چې څنگه خوښه وي دخپل مخلوق په جوړښت کې زیاتوالی راولي، بېشکه هغه پر هر څه قادر دی. همدارنگه الله تعالی د النحل سورت په دویم آیت

کې فرمايي: ﴿يُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ بِالرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ﴾ [النحل: ٢]. **ژباړه:** الله جَلَّ جَلَالُهُ دغه ملايکې او روح چې په خپل کوم بنده يې وغواړي د خپل حکم سره يې نازلوي.

**٢. حديث شريف**

له نبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه د ملايکو په اړه زيات احاديث روايت شوي دي چې دلته په لنډ ډول يو حديث بيانوو: «عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا زَالَ يُوصِينِي جِبْرِيلُ بِالْجَارِ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ»[1] **ژباړه:** له حضرت عايشې رضي الله تعالى عنها څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: جبرائيل عليه السلام به ما ته تل د ګاونډي په هکله توصيه کوله تر دې چې ما ته دا ګومان پيدا شو چې يو ګاونډی به له خپل ګاونډي څخه ميراث وړي.

## په ملايکو باندې د ايمان حکم

په ملائکو باندې ايمان راوړل، باور او يقين کول فرض دي، منکر يې د اسلام له کړۍ څخه وتلی ګڼل کيږي.

## ملايکې له ټولو ګناهونو څخه معصومې دي

د قرآن کريم زيات شمېر آيتونه د ملايکو پر عصمت دلالت کوي، لکه: څرنګه چې الله تعالى فرمايي: ﴿لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾ [التحريم: ٦] **ژباړه:** په هغه څه کې چې الله تعالى امر ورته کوي نافرماني يې نه کوي او هغه څه سرته رسوي چې امر ورته کيږي.

همدارنګه په يوه بل آيت کې فرمايي: ﴿يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ﴾ [الأنبياء: ٢٠] **ژباړه:** شپه او ورځ تسبيح وايي لټي نه کوي.

همدارنګه نور ډېر آيتونه شته چې د ملايکو په عصمت باندې دلالت کوي چې دلته په همدې ذکر شويو آيتونو بسنه کوو.[2]

## د ملايکو صفتونه

په قرآن کريم او نبوي سنتونو کې د ملايکو ډېر زيات صفتونه ذکر شوي دي چې په لنډ ډول يې ذکر کوو.

١. ملايکې له نور څخه پيدا شوي دي.

---

١ – صحيح البخاري ت – (١٥ / ١٩٨)

٢ – المواقف للامام عضد الدين عبد الرحمن بن أحمد الإيجي، (٣ / ٤٥٣).

۲. ملایکې په سترګو نه لیدل کیږي، خو که چېرې دوی چاته د څرګندېدو اراده وکړي نو لیدل یې شوني دي.
۳. ملایکې خپل ځانونه په ښو او ښکلو شکلونو سره جوړولای شي.
٤. الله تعالی ملائکې انبیاؤ ته د وحې او داسې نورو ارزښتناکو کارونو په سرته رسولو ګمارلې دي.
٥. پرته له ستونزې څخه د ځمکې او آسمان تر منځ تګ او راتګ کولای شي.
٦. ځینې ملایکې د دوو، ځینې د دریو، ځینې د څلورو او ځینې له دې څخه د زیاتو وزرونو خاوندانې دي.
۷. الله تعالی له انسانانو څخه مخکې ملایکې پیدا کړې دي.
۸. ملائکې سره له دې چې معصومې دي او تل د الله تعالی عبادت کوي، خو بیا هم له الله تعالی څخه ډېرې وېرېږي.
۹. الله تعالی ته ملایکې ډېرې نژدې او مقربې دي.
۱۰. ملائکې د خارق العادة توان خاوندانې دي.

## د ملایکو دندې

ملایکو ته الله تعالی ډېر لوی لوی کارونه او دندې ورسپارلې دي، دوی ته الله تعالی دا توان ورکړی چې ورسپارل شوې دندې په ښه توګه سرته ورسوي، د ملایکو د دندو ډولونه په لاندې ډول بیانیږي.

۱. الله تعالی پیغمبرانو ته د وحې په رسولو باندې جبرائیل عليه السلام مکلف کړی دی جبرائیل عليه السلام د ټولو ملایکو څخه غوره او د الله تعالی په وړاندې معزز دی چې د (الروح الامین) په نامه سره یې یاد کړی دی.
۲. میکائیل عليه السلام ته د اوربښتونو او نباتاتو د پالنې دنده ور سپارل شوې ده. میکائیل عليه السلام هم د الله تعالی په وړاندې لوړه مرتبه او لوی مقام لري، ځکه الله تعالی د جبرائیل په څنګ کې ذکر کړی دی.
۳. اسرافیل عليه السلام ته د قیامت لپاره د شپېلۍ وهلو دنده ورسپارل شوې ده.
٤. ملك الموت (عزرائیل) او د ده ملګرو ته د ارواحو د قبض کولو دنده ورسپارل شوې ده.

۵.  کرام کاتبین ته د خلکو د عملونو د لیکلو دنده ورسپارل شوې ده.

٦.  نکیر او منکر ته په قبر کې له مړو څخه د پوښتنو کولو دنده ورسپارل شوې ده.

## په ملایکو باندې د ایمان ګټې

١. د الله تعالی په عظمت پوهېدل.

٢. له مخلوق څخه د الله تعالی غنا، (که موږ له الله تعالی څخه سرغړونه وکړو، نو د الله تعالی نور مخلوقات شته چې د هغه عبادت وکړي او الله تعالی له دې ټولو څخه بې پروا او غني دی.

٣. له مؤمنانو سره د الله تعالی له مینه څخه خبرتیا چې دا د دې لامل کیږي چې بنده ګان د الله تعالی ډېر اطاعت او پیروي وکړي.

٤. د الله تعالی له قدرت او د ده د لښکر له قوت څخه خبرتیا، د ده په نصرت او مرسته ایمان راوړل چې دا په جهاد او دعوت کې د ثبات لامل کیږي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د ملایکو د عصمت او صفتونو په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.




١.  ملایکې تعریف کړئ.

٢.  ملایکې له څه شي څخه پیدا شوې دي.

٣.  د ملایکو د اثبات په اړه یو څو دلیلونه ذکر کړئ.

٤.  په ملایکو باندې د ایمان حکم بیان کړئ.

۵.  په لنډ ډول د ملایکو صفات ذکر کړئ.

٦.  په لنډ ډول د ملایکو دندې ذکر کړئ.

٧.  په ملائکو باندې د ایمان څو ګټې بیان کړئ.



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د ملایکو په اړه یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د احاديثو اهميت

په تېرو ټولګيو کې مو ولوستل چې حديث د پيغمبر ﷺ د اقوالو، افعالو، او تقريراتـو څخـه عبارت دي. په دې لوست کې غواړو چې د احاديثو اهميت وپېژنو.

**۱ـ حديث د الله ﷻ وحې ده**

وحې په دوه ډوله ده

يوه جلي وحې چې له قرآن کريم څخه عبارت ده، اوبله خفي وحې چې دپيغمبر ﷺ له احاديثو څخه عبارت ده، ځکه چې پيغمبر ﷺ به خپل اقوال او افعال د جبرائيل عليه السلام په لارښوونو ترسره کول. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَى إِنْ هُوَ إِلاَّ وَحْيٌ يُوحَى﴾ [النجم: ۳، ٤].

**ژباړه:** او هغه {پيغمبر ﷺ} له نفسي خواهش څخه تاسې ته خبرې نه کوي، بلکې دا وحـې ده چې پر هغه نازليږي، نو حديث چې د پيغمبر ﷺ خبرې دي او هم د الله ﷻ لـه طرفـه پـر خپل پيغمبر نازله شوې وحې ده، لکـه: چې پيغمبـر ﷺ فرمـايلي دي: «أَلاَ إِنِّي أُوتِيتُ الْكِتَابَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ».[1]

**ژباړه:** ځان پوه کړئ! بيشکه ماته کتاب (قران کريم) راکړل شوی، د هغه پـه څېـر نورڅـه هم راکړل شوي دي (يعنې احاديث) په همـدې بنـاء دپيغمبـر ﷺ احاديـث دالله ﷻ خفـي وحې ده.

**۲ـ دپيغمبر ﷺ پيروي.**

لکه: څرنګه چې دقرآن کريم د لارښوونو پيروي پرمسلمانانو فرض ده، همداسـې دپيغمبـر ﷺ د سنتونو، او احاديثو پيروي هم پرمسلمانانو لازمه ده، ځکـه د الله ﷻ پيـروي د رسـول الله ﷺ په پيروۍ کې نغښتې ده، لکه: څرنګه چې د الله ﷻ مينـه دپيغمبـر ﷺ پـه مينـه پـورې تړلې ده. نو څوک چې دپيغمبر ﷺ تابعداري اوپيروي نه کوي او د الله ﷻ نږديوالی په بله لاره کـې لټـوي، هېڅکلـه خپـل مـرام تـه نـه شـي رسـيدای. الله ﷻ فرمـايي: ﴿قُلْ إِن كُنْتُم تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ. . . ﴾ [آل عمران: ۳۱]

**ژباړه:** ورته ووايه اې پيغمبره! که چېرې په رښتيا د الله ﷻ سره مينه کوئ، نـو زمـا پيـروي وکړئ، الله به هم درسره مينه وکړي.

---

۱- ۱ سنن أبي داود

همداراز پیغمبرﷺ فرمايي: «مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَنْ عَصَانِي فقد عصى الله» [1]

**ژباړه:** چاچې زما پیروي وکړه په حقیقت کې یې دالله ﷻ پیروي وکړه، اوچاچې زما نافرماني وکړه هغه د الله ﷻ نافرماني وکړه.

دپیغمبرﷺ داقوالو، افعالو، اوکړنوڅخه سرغړونه لويه بد مرغي، اوگمراهي ده.

الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ [النساء: ١١٥]

**ژباړه:** اوڅوک چې د رسولﷺ څخه سر غړونه کوي، وروسته له هغې چې سمه لار ورته څرگنده شي، د مؤمنانو له لارې څخه پرته بله لاره خوښه کړي، نو هماغه لوري ته به یې وروگرځوو چې ده ورته مخه کړې ده، دوزخ ته به یې ورننباسو او هغه دورتلو بد ځای دی.

همدا راز پیغمبرﷺ فرمايلي دي: «تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ» [2]

**ژباړه:** ما ستاسې لپاره دوه اساسه پرېښي دي چې هېڅکله به گمراه نه شئ، څو پورې چې تاسې پر هغې منگولې لگولې وي چې يو د الله ﷻ کتاب او بل د الله ﷻ د رسول سنت دی.

د پیغمبرﷺ پیروي دا ده چې د هغه ویناوې ومنل شي، لارښوونې یې عملي شي، د ژوند په ټولو برخوکې د هغه دسیرت پیروي وکړل شي او د هغه پر ویناوو د هیچا وینا غوره ونه گڼل شي.

### ٣ـ حدیث دقرآن کریم شرحه ده

پیغمبرﷺ په خپلو اقوالو، افعالو او تقریراتو سره قرآن کریم تفسیر اوشرحه کړی دی.

الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ. . . ﴾ [النحل: ٤٤]

**ژباړه:** اونازل کړی مو دی تاته ذکر { قرآن کریم} د دې لپاره چې ته بیان کړې خلکوته هغه لارښوونې چې دوی ته رالیږل شوي دي.

---

١ – البخاري.

٢ – موطأ امام مالک

له همدې امله که چېرې دقرآن کريم په ځينو آيتونوکې اجمال پروت و د پيغمبرﷺ په احاديثو کې د هغې توضيح او تفسير بيان شوی دی، لکه: چې الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ [البقرة: ٨٣]

**ژباړه:** لمونځ قايم کړئ. پيغمبرﷺ په خپلو احاديثو سره د لمانځه د درولو طريقه، د رکعتونو شمېر، او د لمانځه وختونه په ځانګړې ډول بيان کړي دي.

**۴ـ احاديث دشريعت دويم اصل اومصدر دی**

په شريعت کې ځينې حکمونه له قرآن کريم څخه ثابت دي، خوځينې نور يې د پيغمبرﷺ په احاديثو ثابت شوي دي، لکه: په ميراث کې دجدې (نيا) شپږمه برخه، دکافر او مسلمان ترمنځ له يوبل څخه د ميراث د نه وړلو حکم، دکورنيو خرو د غوښو خوړلوحرمت، د سرسايې وجوب، د ځينو وحشي ژوو حرمت او داسې نور.

کوم احکام چې په احاديثو ثابت دي دهغو حيثيت دقرآن کريم دحکمونو په څېردی الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [الحشر: ٧]

**ژباړه:** او څه چې پيغمبر تاسې ته درکړي هغه واخلئ، او له کوم شي څخه چې يې منعه کړي ياستئ مه يې کوئ. د پيغمبرﷺ احاديث د بې شمېره ټولنيزو، اقتصادي، سياسي، اخلاقي، اوحقوقي مسايلو دويم مصدر دی.

**۵ـ داحاديثو يادول**

حديث يادول خورا لوی فضيلت لري، پيغمبرﷺ هغه چاته چې احاديث په يادو يادوي، وربانديې عمل کوي، د عزت او لوی مقام دعا کړې ده او فرمايلي يې دي: «نَضَّرَ اللَّهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا حَدِيثًا فَحَفِظَهُ حَتَّى يُبَلِّغَهُ...» [1]

ژباړه: الله ﷻ دې تر او تازه لري هغه شخص چې زموږ حديث واوري، بيا يې ياد کړي او هم يې نورو ته ورسوي.

**فعاليت:**

زده کوونکي دې په ډله ييزه توګه ځينې هغه احاديث له يادو ووايې چې په تېرو ټولګيو کې يې ياد کړي وو.

---

١ – سنن أبی داود




۱. د خفي وحې په اړه دقرآن کریم دلیل ذکرکړئ.

۲. احادیث د قرآن کریم شرحه ده دا څه معنالري؟ څرګند یې کړئ.

۳. دشریعت اصول او مصادر کوم کوم دي؟ نومونه یې واخلئ.

٤. داحادیثو یادول څه فضیلت لري؟




د لوست د مهمو ټکو په نظر کې نیولو سره په خپلو کتابچو کې د حدیثو د اهمیت پـه اړه یوه مقاله ولیکئ.

# په چارو کې تدبير

عن أنس رضى الله عنه أن رجلا قال للنبي ﷺ: أوصني يا رسول الله ! فقال له النبي ﷺ: (خُذِ الأَمْرَ بالتَّدْبِيرِ فإِنْ رَأَيْتَ في عاقِبَتِهِ خَيْراً فأمْضِ وإِنْ خِفْتَ غَياً فأمسِكْ). [شعب الإيمان للبيهقي]

**د راوي پېژندنه**

انس بن مالك بن نضر ابوحمزه انصاري خزرجي رضي الله عنه پوره لس كاله د رسول الله ﷺ په خدمت كې تېركړي وو او په كوچنيوالي كې د بدر په غزا كې شريك شوى. په لمانځه كولو كې رسول الله ﷺ ته ډېر ورته و. انس بن مالك يو له هغو صحابه وو څخه دى چې زيات شمېر حديث يې روايت كړي دي. له ده څخه د روايت شويو احاديثو شمېر څه دپاسه دوه زره اودوه سوو احاديثو ته رسيږي. دپيغمبر ﷺ له وفات څخه وروسته دجهاد او فتوحاتو په دوره كې په بصره كې استوګن شو او په بصره كې وروستى صحابي و چې د هجرت په سلم كا ل څه د پاسه د سلو كلونو په عمر وفات شو.

**د ځينو كلمو معنا**

١_أوصني: د امر لفظ دى: ماته نصيحت وكړه.
٢_خُذ: دامر لفظ دى: واخله، ونيسه، وكړه.
٣_الأَمْرَ: چاره، كار.
٤_التَّدْبِير: پايلوته په پام لرنې سره چارې سرته رسول.
٥_فأمْضِ: د امر لفظ دى: پس ترسره يې كړه، سرته يې ورسوه.
٦_غَياً: د خير ضد، ضلالت او بې لارې.
٧_فأمسِكْ: د امر لفظ دى: ځان ترې وساته، مه يې كوه.

**د حديث ژباړه**

له انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې يوه سړي پيغمبر ﷺ ته وويل: اې د الله رسوله! ماته نصيحت وكړه، نو رسول الله ﷺ ورته وويل: كارونه په پوره غور او تدبير سره كوه، كه دې د كار په پايلو كې خير او ښېګڼه ليده، نو ورانديې ځه او تر سره كوه يې، او كه خرابي په نظر درتله، نو ځان ترې وساته.

### د حدیث حکمت

داسلام سپېڅلی دین تل د انسان د هوسا ژوند په هڅه کې دی. او ځای په ځای انسان ته په دې هکله لازمې او اړینې لارښوونې کوي.

تدبیر یا په کارونو کې سوچ، د چارو پر پایلو نظر لرل، احتمالي ګټې او زیانونه سره پرتله کول، هدفونه یاد ساتل او په دې توګه د چارو د لړۍ ژوره څارنه او وخت په وخت د هغو ارزونه هغه څه دي چې انسان ته د ژوند په چارو کې بری او موفقیت په برخه کوي، ګټې یې خوندي او تر ممکنه حده پورې د زیانونو مخه نیسي.

**فعالیت:**

د رسول الله ﷺ له سیرت څخه د هغه له کارونو څو بیلګې په ګروپي توګه په ګوته کړئ او د پلان او تدبیر نښې په کې وښایاست.

### د حدیث شریف ګټې

#### ۱ـ په نصیحت دصحابه وو ټینګار

صحابه کرام خپلو ځانونو او خپلو چارو ته متوجه وو او تل به د کمال په لټه کې وو. دوی به له پیغمبر ﷺ څخه د ځانګړو توصیو او نصیحتونو غوښتنه کوله به او رسول الله ﷺ به هغوی ته هر اړخیز نصیحتونه کول چې وروسته په صحابه کرامو او تابعینو کې دغه کار یو نېک سنت وګرځید او چې کله به سره جلا کېدل او یا به پر سفر روانیدل نو یو بل ته به یې ویل: ماته نصیحت وکړه! او هغوی به د مینې او لورېنې نه په ډک زړه ورته د خیر او نېکمرغۍ نصیحتونه کول.

#### ۲ـ د تدبیر غوښتنې

په چارو کې د تدبیر غوښتنه دا ده چې انسان مخکې له دې چې په کوم کار لاس پورې کړي لومړی دې د هغه کار په اړه پوره غور وکړي، له خپلو نږدې دوستانو او تجربه لرونکو کسانو سره دې مشوره وکړي، خپل نیت دې جوړ کړي، شرعي اصول او معیارونه دې په نظر کې ونیسي، موخې دې په ګوته کړي، دهغه کار په وسایلو او امکاناتو دې هم غور وکړي او له هغه وروسته دې په پاک الله (ج) دې توکل وکړي او په قوي هوډ سره دې په کار پیل وکړي. چې دغې عملیې ته (کرښنده)، (خطه) او (پلان) ویل کیږي.

#### ۳ـ چارې په غور او تدبیر سره سرته رسول او له تلوار څخه ځان ژغورل.

د بېړې، او وارخطایی په خلاف کارونه په تدبیر، آرام فکر، سړې سینې، پیل او پایلوته په پام لرنې سره سرته رسول ستره هوښیاري ده چې رسول الله ﷺ پرې امرکړی دی، لکه: چې

ابوذر ﷺ ته په خطاب کې فرمايي: (اې ابوذره! د تدبير په څېر هوښياري نشته!). د همدې لپاره اسلام د تدبير او غور نسبت د الله لوري ته کړی او هغه يې د نبوت اوپيغمبرۍ يوه برخه ګرځولې او بېړه يې د شيطان له لوري ګڼلې: رسول الله ﷺ فرمايي: (تانئ تأمل، د رنګ او فکر کول د الله (ج) له لوري دي او بېړه د شيطان له لوري ده). په بل حديث شريف کې فرمايي: ښه رويه، په چارو کې غور او اعتدال د نبوت څلورويشتمه برخه ده.[1]

**٤ـ د کاري جريان څارنه او ارزونه او له موخو سره د هغه تطبيقول.**

دحديث شريف د وروستۍ جملې غوښتنه داده چې د کار په اوږدو کې انسان بايد وخت په وخت د کار جريان وڅاري چې څومره په خپل مطلوب مسير باندې روان دی، که کار له پلان سره سم روان و او له خپلو موخو سره تړلی او نژدې و، نو کار بايد دوام وکړي څو بشپړ شي او که داسې نه و، بلکې د وخت، مال او وسائلو ضياع وه او ټاکل شوي هدفونه ورڅخه نه ترلاسه کېدل، نو بايد کار ودرول شي.

**٥ـتدبير او توکل.**

توکل يو شرعي امر دی او مسلمان ته ښايي چې تل په الله (ج) توکل وکړي. د توکل رښتينی او شرعي مفهوم دادی چې يو مسلمان بايد د کار ټول شرايط، اسباب، وسايل برابر کړي، په کار کې زړه نازړه نشي او په پوره عزم سره په کار پيل وکړي او سر ته يې ورسوي.




١ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

آـ التدبير، بـ أمض، جـ غيا، دـ أمسك،

٢ـ د لوست حديث شريف په لنډه توګه وژباړئ.

٣ـ په چارو کې د تدبير غوښتنې څه دي؟




د تدبير په هکله يوه مقاله وليکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

---

١ - مسند أحمد بن حنبل

# د سولې اهمیت

عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: «أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلاَةِ وَالصَّدَقَةِ»؟. قَالُوا: بَلَى. قَالَ: « إِصْلاَحُ ذَاتِ الْبَيْنِ. وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ الْحَالِقَةُ ». [سنن ابی داود]

**د راوي پېژندنه**

نوم یې عویمر دعامر زوی د خزرج له قبیلې څخه ؤ او په ابودرداء یې شهرت درلود. ډېر لوی فقیه صحابي و. پیغمبرﷺ ورته دحکیم **الامة** لقب ورکړی و. کله چې مسلمانانو مدینې منورې ته هجرت وکړ، نو پیغمبرﷺ دده او سلمان فارسيرضي الله عنه ترمنځ د مواخات (وروړګلوۍ) تړون وتاړه. په ټولو غزاګانو کې له رسول اللهﷺ سره ملګری و. حضرت عثمانرضي الله عنه ددمشق قاضي مقرر کړی و. نوموړی دهجرت په(۳۲)کال دحضرت عثمانرضي الله عنه دخلافت په دور کې په دمشق کې وفات شو.

**د ځینو کلمو معناوې**

۱. **أَلاَ أُخْبِرُكُمْ**: آیا تاسو خبر نه کړم؟
۲. **بِأَفْضَلَ**: په غوره عمل.
۳. **إِصْلاَحُ ذَاتِ الْبَيْنِ**: دخلکو ترمنځ سوله راوستل.
۴. **الْحَالِقَةُ**: ددین له منځه وړونکې.

**د حدیث ژباړه**

له حضرت ابودرداءرضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اکرمﷺوفرمایل: آیا تاسې دداسې عمل څخه خبر نه کړم چې له روژې، لمانځه او صدقې څخه یې درجه لوړه ده ؟ صحابه کرامو وویل: بلې(هوکې) یارسول الله !بیا پیغمبرﷺ وفرمایل: هغه عمل دخلکو ترمنځ سوله روغه راوستل دي، خپل منځي فساد اواختلاف دین له منځه وړي.

### د حدیث حکمت

داسلام لـه ځـانګړنو څخـه يـوهم دکورنيـو، پرګنـو، قومونـو، او نژادونـو تـرمنځ اتفـاق، وروروګلوي، او يو له بل سره په کړنوکې د همغږۍ رامنځ ته کول او ټينګـول دي، هرهغـه عمل چې دغه وحدت ته زيان رسوي او يا يې کمزوری کوي، داسلام سپېڅلی دين دهغه د له منځه وړلو ټولې لارې په ډېر دقت سره په ګوته کړې دي، ترڅو مـسلمانان د ورونـو او خويندو په څېر د مينې او اتفاق تر سيورې لانـدې د خوشـحالۍ شـپې او ورځـې تېرې کړي، يو له هغو اسبابو څخه چې ټولنيز وحدت تـه ګـواښ دی د دوو يـا زياتوکسانو تـر منځ اختلاف دی پيغمبرﷺ پـه پـورتني حـديث شـريف کـې د اخـتلاف لـه منځـه وړل د ډېروعباداتوپه پرتله غوره او بهترعمل ګڼلی دی.

**فعاليت**

زده کوونکي دې د سولې دګټو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړي.

### د حديث شريف ګټې

### ۱ـدسولې ارزښت داسلام له نظره

داسلام له نظره دسولې ارزښت له نفلـي روژې، نفلـي لمـونځ اونفلـي صـدقې څخـه غـوره دی، ځکه چې په روژه او لمانځه کې يوازې فردي مصلحت پروت دی، خو په سـوله کـې فـردي او ټولنيز دواړه مصلحتونه پراته دي او هم په ټولنه کې د فساد د مخنيوي لار ده.

### ۲ـ سوله يووالی رامنځ ته کوي

په دې حديث شريف کې مسلمانان سولې ته هڅول شوي دي، د دې لپاره چې سوله هـم ملي يووالی تمثيلوي او هم د الله ﷻ په رسۍ (قرآن کريم) بانـدې دمنګولـو لګولـو مقـصد ترسره کيږي. خپلمنځي اختلافات په دين کې ډېـره لويـه نيمګړتيـا ده، نـو څـوک چـې د خلکو له منځ څخه د فساد او دښمنۍ د ورکولو هڅه کوي، دومره لوړه مرتبه لري چـې د نفلي لمونځ کوونکو، روژې او خيرات ورکوونکو له مرتبې څخه لوړه ده.

### ۳_خپلمنځي اختلافات دینی اړتیاوې

د اختلاف دوام د خپلو خپلوانو سره د صله رحمی پرې کېدلو، د متقابل درناوې له منځه وړلو، د نېکو عملونو د نه قبلیدلو، د ظلم د دوام، په زړونوکې دکرکې او نفرت زیاتېدلو، او د مقابل لوري په هکله د دسیسو په کار اچولو لامل گرځي چې دا ټول د اسلام له نظره ناروا کارونه دي او له دین او دینداری سره په ټکر کې دي.

**فعالیت**

یو شمېر زده کوونکي دې د دوو کسانو ترمنځ د سولې راوستلو تمثیل وکړي.




۱ـ لاندې کلمې معنا کړئ.

آ_أَفْضَل.

ب_إِصْلاَحُ ذَاتِ الْبَيْنِ.

ج_الْحَالِقَةُ.

۲ـ په پورتني حدیث شریف کې ولې پر سولې دومره زیات ټینگار شوی دی؟

۳_ خپلمنځي اختلافات څه زیانونه لري؟



**کورنی دنده**

د لوست د مهمو ټکو په پام کې نیولو سره د سولې د ارزښت اهمیت په اړه یوه لنډه مقاله ولیکئ.

# په کارونو کې آسانتیا

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ: مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ قَطُّ إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا، فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ، وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فِي شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا أَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللَّهِ فَيَنْتَقِمَ بِهَا لِلَّهِ عزوجل). [متفق عليه]

**د راوي پېژندنه**

حضرت عایشه رضي الله عنها د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لور، د پیغمبر ﷺ مېرمن او د مسلمانانو مور ده د هجرت په دویم کال پیغمبر ﷺ ور سره واده وکړ، خورا فقیهه او عالمه ښځه وه، په ځانګړي ډول د پیغمبر ﷺ د ژوندانه په هکله یې پوره معلومات درلودل، له پیغمبر ﷺ څخه یې (۲۲۱۰) دوه زره دوه سوه لس حدیثونه روایت کړي دي او د هجرت په ۵۸ کال کې وفات شوه.

**د ځینو کلمو معناوې**

۱. مَا خُيِّرَ: واک اواختیار نه دی ورکړل شوی.
۲. بَيْنَ أَمْرَيْنِ په دوه کارونو کې.
۳. قَطُّ: هېڅکله.
٤. إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا: مګرداچې د هغو اسان به یې غوره کاوه.
٥. أَبْعَدَ: ابعد د بعد له مادې څخه اخیستل شوی، دلرې والي معنا لري.
٦. وَمَا انْتَقَمَ: انتقام اوبدله یې نه ده اخیستې.
٧. تُنْتَهَكَ: دانتهاك له مادې څخه اخیستل شوی چې: دېښولاندې کولومعنا ترې نه مراد ده.
٨. حُرْمَةُ اللَّهِ: دالله جل جلاله اوامر، نواهي، او احکام.

**د حدیث ژباړه**

حضرت عایشه رضی الله تعالی عنها فرمایي چې هېڅکله رسول الله ﷺ ته په دوو کارونو کې دیوه د خوښولو اختیار نه دی ورکړل شوی، مګر ده ﷺ به آسانه عمل ترې غوره کاوه، که چېرې ګناه به پکې نه وه، خو که هغه به ګناه وه، نو تر ټولو خلکو نه زیات به یې ځان ترې لرې ساته او پیغمبر ﷺ هېڅکله د خپل ځان لپاره له چا څخه غچ نه دی اخیستی، مګر دا چې د الله جل جلاله حقوق به تر پښو لاندې کېدل بیا به یې یوازې د الله جل جلاله د رضا په خاطر انتقام اخیسته.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د اسلام په سپېڅلي دین کې د آسانۍ څو بېلګې ووايي.

**د حدیث حکمت**

رسول الله ﷺ خورا ډېر غوره صفات درلودل، لکه: عفوه، صبر او زغم، استقامت، پراخه سینه، په کړو وړو کې آساني کول، د جفا کوونکو سره په غوره توګه چلند کول او داسې نور چې ځینې يې په دې حدیث کې ذکر شوي دي.

**د حدیث ګټې**

**۱ـ د اسلام سپېڅلي دین د اسانۍ دین دی**

اسلامي تعلیمات او ټول تکلیفي احکام د آسانۍ او له مشقت څخه د لرېوالي پر اساس بنا دي چې په هر وخت او هر حالت کې پرې عمل کېدای شي. الله ﷻ خپل بندګان په داسې څه نه دي مکلف کړي چې له کولو يې ناتوانه وي، لکه: چې الله تعالی فرمايلي دي: ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدَّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [الحج: ۷۸]

**ژباړه:** او الله ﷻ په دین کې پر تاسې څه سختي نه ده راوستې.

په بل آیت کې الله ﷻ فرمايي: ﴿يُرِيدُ الله أَن يُخَفِّفَ عَنْكُمْ وَخُلِقَ الإنسان ضَعِيفاً﴾ [النساء: ۲۸]

**ژباړه:** الله ﷻ غواړي چې له تاسې څخه درانه بارونه سپک کړي، ځکه چې انسان له بیوسۍ او کمزورۍ پیدا کړ شوی دی. پیغمبر ﷺ پر دې اساس خپل امت ته په عملي بڼه ورښودلي دي چې دیني او دنیوي کارونه په داسې توګه سرته ورسوي چې سختي پکې نه وي.

**۲ـ په ژوند کې د پیغمبر ﷺ پیروي**

لکه: چې پیغمبر ﷺ دشریعت د آسانتیا اصل او قانون په خپلو عملي کړنوکې پلی کړی و، نو هرمسلمان ته ښايي چې د پیغمبر ﷺ پیروي وکړي او په دیني او دنیوي کارونوکې آسانه او هغه چې تل يې د سرته رسولو وس ولري ځانته غوره کړي.

**۳ـ د حلم، عفوې او صبر مقام**

صبر او تېرېدنه د یوه ریښتني مسلمان له غوره اخلاقي صفتونو څخه دوه صفتونه دي. هغه څوک چې د قدرت په وخت کې عفوه غوره او له انتقام اخیستلو څخه لاس واخلي او د نورو له ظلم او تېري څخه تېر شي په حقیقت کې يې د نبي کریم ﷺ د لارې او سنتو پیروي کړې ده.

الله تعالی عفوه کوونکي داسې ستايلي دي: ﴿وَالْكَاظِمِينَ الغَيْظَ والْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ واللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴾ [ آل عمران: ١٣٤ ]

**ژباړه:** اوپرهېزګاران هغه کسان دي چې غوسه زغمونکي او د خلکو له (بدئ) تېرېدونکي وي او الله (داسې) احسان کوونکي خوښوي.

**٤ـ د الله ﷻ احکامو ته په درنه سترګه کتل او د بې حرمتۍ څخه يې د ځان ژغورل**

قهر او غوسه ګڼ شمېر اسباب لري چې ځينې يې ناسم او ځينې يې په دين کې ستايل شوي دي چې په غيرت هم ورڅخه تعبيرکېږي، غيرت هغه وخت د ستاينې وړ دی چې د الله ﷻ د اوامرو، حدود، او حکمونو تر پښو لاندې کېدلو په وړاندې عکس العمل وي، نو پر داسې مهال سستي کول د ايمان دکمزورۍ څخه پرته بل مفهوم نه لري، که څوک د الله ﷻ او د رسول ﷺ حکمونو او ديني اساساتو او مقدساتو ته د سپکاوي او بې احترامۍ د جرم مرتکب شي، بايد هغه ته سزا ورکړل شي، ځکه د داسې چا په حق کې بې پروايي لويه ګناه ده.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته پر هغو مواردو چې غوسه پکې ستايل شوې ده په خپلو منځونو کې دې خبرې وکړي.




١. لاندې کلمې معنا کړئ:
   - الف: خُيِّرَ:
   - ب: بَيْنَ أَمْرَيْنِ:
   - ج: أَيْسَرَهُمَا:
   - د: قَطُّ:
٢. د ښو اخلاقو څو مثالونه ذکرکړئ.
٣. د حرمة الله څخه څه مراد دی؟ واضح يې کړئ.




د ښښنې په اړه يوه مقاله وليکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

پنځلسم لوست

# د ظلم مخنیوی

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ –رَضِيَ اللهُ عَنْهُ– عَنِ النَّبِيِّ –صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ– قَالَ: اُنْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا، فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْصُرُهُ إِذَا كَانَ مَظْلُومًا أَفَرَأَيْتَ إِذَا كَانَ ظَالِمًا كَيْفَ أَنْصُرُهُ قَالَ تَحْجُزُهُ أَوْ تَمْنَعُهُ مِنْ الظُّلْمِ فَإِنَّ ذَلِكَ نَصْرُهُ. {رواه البخارى}

**د ځینو عبارتونو معناوې**

| | |
|---|---|
| ١ـ انْصُرْ أَخَاكَ: | دخپل (مسلمان) وروررمرسته وکړه. |
| ٢ـ تَحْجُزُهُ أَوْ تَمْنَعُهُ مِنْ الظُّلْمِ: | له ظلم څخه يې راوګرځوه. |
| ٣ـ فَإِنَّ ذَلِكَ نَصْرُهُ : | بې له شكه دغه كار له هغه سره مرسته ده. |

**د حديث ژباړه**

د انس ﷺ څخه روايت دى چې نبي اكرم ﷺ فرمايلي: د خپل ورور سره مرسته وكړه، كه هغه ظالم وي او كه مظلوم. يوه سړي ورته وويل: اى د الله رسوله! كه چېرې مظلوم وي مرسته به يې وكړم، مګركه ظالم وي بيا يې څرنګه مرسته وكړم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: له ظلم څخه يې راوګرځوه، بې له شكه دا مرسته ده، له هغه سره.

**د حديث سبب ورود**

په مسلم شريف كې له جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دى چې د پيغمبر اكرم ﷺ په زمانه كې دوه كسان سره په جنګ شول يو يې مهاجر او بل يې انصاري و. مهاجر غږ وكړ چې اې مهاجرو! د مهاجر مرسته وكړئ، انصاري هم غږ وكړ چې اې انصارو! د انصاري مرستې ته راورسيږئ. پيغمبر ﷺ راووت او ويې ويل: داڅه د جاهليت د زمانې خبرې كوئ؟! اصحابو وويل: په الله ﷻ قسم چې داسې نه ده. دې دوو كسانو يو بل سره ووهل، پيغمبر ﷺ وفرمايل: دا پروا نه لري، بايد هر يو له تاسو څخه د خپل وروور سره كه هغه ظالم او يا مظلوم وي مرسته كړې واى.

### د حدیث حکمت

د ظلم او تېري ټول ډولونه حرام دي او له منځه وړل يې د هر مسلمان دنده ده، اسلام خلکو ته په عدل او انصاف امر کړی دی، له مسلمان څخه په کلکه غوښتنه کوي چې په نيکو اخلاقو باندې ځان سمبال کړي، دا ځکه چې د هر ډول پرمختګ او قانونيت د پلي کيدلو اساس عدل او انصاف دی، څرنګه چې ظلم او تېری د ټولو بدمرغيو لامل دی، نو ځکه پيغمبرﷺ په دې حديث شريف کې د هر ډول ظلم مخنيوی لازم بللی دی.

د دې حديث له مخې له ظلم سره مبارزه يوه شرعي وجيبه ده، مسلمان مکلف دی چې له مظلوم سره مرسته وکړي، حق يې ورته واخلي او ظالم له ظلم کولو څخه منع کړي.

**فعاليت**

په ډله ييزه توګه د فردي او اجتماعي ظلمونو څومثالونه ووايئ.

### د حديث شريف ګټې

#### ۱_د ظلم او ظالم مخنيوی اړينه ده

په هره ټولنه کې زورور اوکمزوری ژوند کوي، ظلم چې عموماً د زورورو له خوا د کمزورو په مقابل کې ترسره کيږي يو ناوړه خصلت دی.

ظلم ټول انسانيت له منځه وړي، نو بايد د مخنيوي لپاره يې ټول انسانان يو موټی شي، که چېرې خلك د ظلم په وړاندې يو له بل سره مرسته ونه کړي، د ظالم لاس له ظلم څخه لنډ نه کړي، مظلوم د ظالم له پنجو ونه ژغورل شي، نوظلم به دومره پراخه شي چې د ځمکې پرمخ به ژوندي انسانان تر خاورو لاندې او ولاړې آبادۍ به رانسکورې شي، نو مسلمان مکلف دی چې د ظلم په وړاندې ودريږي او د ظالم مخنيوی وکړي.

#### ۲_ له مظلوم سره مرسته لازمه ده

د هغو حقوقو له جملې څخه چې يو مسلمان يې پر بل لري له مظلوم سره مرسته کول دي، که چېرې داسې څوك وليدل شي چې پر هغه ظلم او تېری کيږي، نو پر نورو مسلمانانو لازم دي چې له هغه سره د هرې ممکنې وسيلې له لارې مرسته وکړي او له ظلم څخه يې وژغوري، دا هغه حق دی چې داسلام سپېڅلي دين ټول مؤمنان يې پرې مامور کړي دي.

**۳_ له ظالم سره مرسته يعنې څه؟**

کله چې د ظالم لفظ ذکر شي فکر کيږي چې ظالم هغه څوک دی چې يوازې پر نورو تېرى کوي، خو داسې نه ده، ځکه ظالم هغه چاته هم ويل کيږي چې پرخپل ځان ظلم کوي، لکه: شرک، کفر، ځان وژنه، صغيره اوکبيره گناهونه چې دا پر خپل ځان او نفس يو ډول ظلم دی، نو لازمه ده چې د هر ډول ظالم لاس له ظلم څخه ونيول شي، ترڅو د دنيوي او اخروي سزاگانو څخه وژغورل شي، له گناه څخه د ظالم ژغورنه په حقيقت کې له ظالم سره مرسته کول دي.

**فعاليت**

له ظلم څخه لاس نيونه څرنگه کيږي؟ د ښوونکي په مرسته په ډله ييزه توگه يې لارې چارې په گوته کړئ.




۱ـ د حديث راوي معرفي کړئ.

۲ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

أ – اُنْصُرْ أَخَاكَ

ب – تَحْجُزُهُ أَوْ تَمْنَعُهُ مِنْ الظُّلْمِ

ج – فَإِنَّ ذَلِكَ نَصْرُهُ

۳_ظالم چاته ويل کيږي؟



**کورنۍ دنده**

پورتنى حديث په يادو زده کړئ او هم لوست په خپلو کتابچو کې وليکئ.

شپاړسم لوست

# د غضب درملنه

عن عطية قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: «إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ وَإِنَّ الشَّيْطَانَ خُلِقَ مِنَ النَّارِ وَإِنَّمَا تُطْفَأُ النَّارُ بِالْمَاءِ فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ». [سنن ابي داود]

**د راوي پېژندنه**

**عطية** د عروة زوی د بنو سعد له قبيلې څخه د رسول اللهﷺ يو جليل القدر صحابی و، له رواياتو څخه وروسته يې له پيغمبرﷺ سره ملاقات کړی او له هغه مبارک څخه يې ځينې احاديث هم روايت کړي، په شام کې يې هستوګنه غوره کړه او اولادونه يې په بلقاء سيمه کې اوسېدل.
په ځينو رواياتو کې د **عطية** بن سعد او په ځينو نورو کې د **عطية** بن عمرو په نامه ياد شوی. د ده لمسی عروة د محمد بن **عطية** زوی د عمر بن عبدالعزيز له خوا د يمن والي ټاکل شوی و.

**د ځينو کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| ۱ـ الْغَضَبُ مِنَ الشَّيْطَانِ: | قهراوغوسه د شيطان له خوا وي. |
| ۲ـ خُلِقَ مِنَ النَّارِ: | له اور څخه پيداشوی. |
| ۳ـ تُطْفَأُ: | مړکيږي |
| ۴ـ فَلْيَتَوَضَّأْ: | اودس دې وکړي. |

**د حديث ژباړه**

د عطيه عوفي ﷺ څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: بې له شکه غوسه د شيطان له طرفه وي او شيطان له اور څخه پيدا شوی دی او اور په اوبو مړ کېږي هرکله چې له تاسو څخه څوک په غوسه شي، نو اودس دې وکړي.

**د حديث حکمت**

د غوره اخلاقو له جملې څخه يو هم د قهر او غوسې څخه ځان ساتل دي، ځکه قهر او غوسه د شيطان له وسوسو څخه پيدا کيږي او شيطان د انسان ازلي دښمن دی، پيغمبرﷺ موږ ته د شيطان له دسيسو څخه د خلاصون او ژغورنې ټولې لارې راپه ګوته کړې دي چې له هغو څخه يو له غوسې څخه ډډه کول دي، ځکه غوسه انسان ډېرو ناوړو کارونو ته اړ باسي چې په انسان کې دده د ناکامی لامل کيږي.

**فعاليت**

زده کوونکي دې د غوسې د اړتياو په هکله يو بل ته معلومات ورکړي.

**د حدیث گټې او احکام**

**۱ـ غضب کمزوري او زغم قوت دی**

ډېر ژر غوسه کېدل د انسان د کمزورتیا نښه ده، لکه: چې د غضب په مقابل کې زغم د قوت نښه ده، دا ځکه چې د غوسې پر وخت انسان پر خپلو حواسو کنټرول له لاسه ورکوي، که دا حالت دوام ومومي ډېرې ناخوالې رامنځ ته کوي، هغه څوک چې د غضب په حساسه لحظه کې خپل ځان اداره کړي، یقیناً ځان یې د بدیو څخه وژغوره او هم یې دغضب په مقابل کې خپل قوت څرګند کړ.

**۲ـ د غوسې پروخت خپل ځان اداره کول بریالیتوب دی**

کله چې انسان په غوسه شي، نو حیواني طبیعت پرې غالب شي، د انسان په باطن کې د شر قوه برلاسی مومي چې په نتیجه کې بشري نفس د خپلو غوښتنو تابع کوي، د الله ﷻ د اوامرو مخالفت ته یې اړ باسي او له نېکیو څخه یې منع کوي، نو په داسې حالت کې انسان ته په کار ده چې له خپل نفس سره مبارزه وکړي، د خپل نفس د کنټرولولو په نیت اودس وکړي چې همدا د نفس د کنټرول تر ټولو غوره لار ده.

**۳ـ د غوسې بدې پایلې**

غوسه دبد اخلاقی سرچینه اویوه وژونکې وسله ده، که چېرې په ژوند کې د غوسې لار تعقیب کړای شي، نو ګڼې فردي اوټولنیزې ستونزې ورڅخه راولاړېږي.

**ا ـ د غوسې فردي زیانونه**

غوسه ډېر مادي، معنوي، روحي او دیني ضررونه لري، دا هغه مها ل په ډاګه کېږي چې کله د غوسه ناک شخص حالت ته وکتل شي: رنګ یې بدلېږي، د بدن وینه یې په جوش راځي، د وجود غړي یې بې واکه کېږي، په خبرو کې یې ګډوډي رامنځ ته کېږي، ژبه یې په سپکو وېناوو پیل کوي، کله کله ورڅخه د فسق او کفر الفاظ هم صادرېږي دا ټول هغه څه دي چې دده دین او بدن دواړه زیانمنوي.

**ب ـ د غوسې ټولنیز زیانونه**

غوسه د خلکو په زړونو کې کرکه او نفرت پیدا کوي چې په پایله کې د وګړو ترمنځ اختلافات راپاروي، مسلمانان یوله بل څخه جلا کوي، دښمني زیاتوي، ژوند تریخوي او د ټولنو د بربادۍ سبب ګرځي.

**۴ـ د غوسې لاملونه**

په دې حدیث شریف کې د غوسې لامل شیطان ښودل شوی دی، دا په دې معنا چې د کوم انسان زړه د الله ﷻ له ذکر او یاد څخه خالي وي، نو په هغه زړه کې شیطان ځای نیسي، شیطان دده پر زړه او ټول جسم باندې مسلط کېږي، آن تردې پورې چې د انسان زړه او ټول بدن د شیطان د وسوسو تابع شي بیا کبر، په خلکو ټوکې او مسخرې کول، په مال، ځان، نسب او څوکۍ غرور کول او داسې نور خویونه د انسان په زړه کې ځای ونیسي، او تل د خلکو د هرې کړنې په مقابل کې ډېر ژر په قهر کېږي، نو هر مسلمان ته

په کار ده چې تل خپله رابطه له خپل رب سره کلکه او خپل زړه د الله ﷻ په يادولو ژوندی وساتي، څو د شيطان د دسيسو او وسوسو ښکار نشي.

**۵ـ د غوسې مخنيوی او درملنه**

غوسه د نورو ناروغيو په څير يو ډول ناروغي ده، د اسلام سپېڅلی دين ددغې خطرناکې ناروغۍ د درملنې او مخنيوي لارې راښودلې دي چې ځينې يې په لاندې ډول دي.

۱ـ پرهر چا لازمه ده چې ځان په ښو اخلاقو سمبال کړي، غوره صفتونه خپل عادت وګرځوي، لکه: صبر، زغم، په ژوند کې ثبات، په ويناوو او کړنو کې فکرکول او داسې نور.

**۲ـ د غوسې پر وخت** د(اعوذبالله من الشيطن الرجيم) ويل.

**۳ـ خپل حالت بدلول:** که چېرې د غوسې پر وخت انسان ولاړ وي بايد کښېني اوکه ناست وي ډډه دې ووهي، ځکه چې په ولاړه کې انسان انتقام او اقدام ته تيار وي او کله چې کښېني او يا ډډه ووهي، د غوسې جوش يې کمېږي.

**۴ـ اودس کول:** دا هغه درملنه ده چې په دې حديث کې يې ذکر شوی دی، دا ځکه چې غوسه د انسان په وجود کې حرارت او ګرمي پيدا کوي او وينه په جوش راولي، خو اودس يا غسل په جسم کې سوړوالی راولي او د وينې حرارت راټيټوي.

همدا راز اودس د عبادت هغه برخه ده چې په کې د الله ﷻ ذکر او ياد ترسره کېږي، دا هرڅه شيطان سپکوي او تېښتې ته يې اړ باسي.

**فعاليت**

زده کوونکي دې د غوسې د له منځه وړلو په هکله يو بل ته معلومات ورکړي.




۱ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

- الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ:
- خُلِقَ مِنَ النَّارِ:
- تُطْفَأُ:
- فَلْيَتَوَضَّأْ:

۲ـ د غضب اسباب په لنډه توګه بيان کړئ.

۳ـ د غضب درملنه اوعلاج څه دی؟ په لنډه توګه يې بيان کړئ.



**کورنۍ دنده**

لوست په خپلو کتابچوکې وليکئ او حديث په يادو زده کړئ.

# غوره خلک

عن جابر قال قال رسول الله صلى الله عليه و سلم: «خَيْرُ النَّاسِ أَنْفَعُهُمْ لِلنَّاسِ»

[مسند الشهاب القضاعي]

**د راوي پيژندنه**

نوم يې جابر او د پلار نوم يې عبد الله، د مديني منورې د خزرج له قبيلې شخه و، پلار او زوی دواړه جليل القدره صحابه وو، پيغمبرﷺ ورته په يوه شپه کې پنځه ويشت ځله د مغفرت دعاء کړې وه، د بدر او اُحد شخه پرته يې په ۱۹غزاګانو کې له رسول اللهﷺ سره يې برخه اخيستې ده، په خپل وخت کې د مدينې منورې لوی مجتهد او مفتي و، د هجرت په (۷۸) کال يې له فاني دنيا شخه سترګې پټې کړې.

**د ځينو کلمو معناوې**

۱ـ خيرالناس: غوره له خلکو شخه.

۲ـ انفعهم: زيات خير رسوونکې له دوی شخه.

۳ـ للناس: دخلکو لپاره.

**د حديث ژباړه**

جابرﷺ فرمايې چې رسو ل اللهﷺ فرمايلي دي: په انسانانو کې غوره هغه شوک دی چې نورو خلکو ته زيات خير او ګټه رسوي.

**د حديث حکمت**

د ځينو خلکو په آند ښه او غوره کس هغه دی چې د ښه نسب، ډېر ثروت او قدرت څښتن وي، خو پيغمبرﷺ له نورو خلکو سره نيکي کول، خلکو ته مادي او معنوي ګټې رسول د غوره والي معيار ګڼلی دی، دا ځکه چې د اسلام سپېڅلی دين د خير او ښېګڼې دين دی.

**فعاليت**

زده کوونکي دې په ډله ييزه توګه له خلکو سره د نيکۍ کولو يو څو مثالونه ووايي.

**د حديث شريف ګټې**

**۱ـ د الله تعالی مرسته**

د اللهﷻ پر وړاندې خلک په يو ډول نه دي، هغه شوک چې د خلکو سره په روا کارونو کې مرسته کوي د هغه سره د اللهﷻ مرسته مل وي او مينه يې ورسره زياته وي، نو بايد موږ له خلکو سره په نيکو کارونو کې مرسته وکړو، څو د اللهﷻ مرسته او مينه مو په برخه شي.

۲ـ ښېګڼه څه ته وايي؟

پیغمبرﷺ انسانان دې ته هڅوي چې له نورو سره نېکي وکړي، هغوی ته خیر ورسوي، خوښي وروبښي او له هغوی څخه غمونه او تکلیفونه لرې کړي. مثلاً که چېرې څوک وږی وي ډوډۍ دې ورته ورکړي، که څوک پوروړی وي د پور په ادا کولو کې دې ورسره مرسته وکړي، له ناروغ سره دې د علاج په برخه کې همکاري وکړي او ناپوهانو ته دې د زده کړې لاره هواره کړي. پیغمبرﷺ د داسې خویونو څښتنانو ته د الله جل جلاله دمرستې او مینه زیرې ورکړی دی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه ښه او بد خویونه په ګوته کړي.




۱ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

- خیرالناس:
- انفعهم:
- للناس:

۲ـ د حدیث لنډه معنا ووایاست.

۳ـ غوره خلک څوک دي؟


**کورنۍ دنده**

۱ـ حدیث شریف له معنا سره په یادو زده کړئ.

۲ـ (په ښوونځي کې د خیر او ګټې کارونو) تر عنوان لاندې یوه لنډه مقاله ولیکئ.

# د ایمان خصلتونه

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ « الإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ شُعْبَةً فَأَفْضَلُهَا قَوْلُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الإِيمَانِ ». [متفق علیه]

**د راوي پيژندنه**

عبدالرحمن بن صخرالدوسي چې پر ابو هريره يې شهرت درلود، د هجرت په اووم کال د خيبر له غزا څخه مخکې د دېرشوکالو په عمر د اسلام په مبارك دين مشرف شو، په همدغه غزا کې يې برخه هم واخيسته، کله چې مدينې منورې ته ورسېد، په نبوي جومات کې يې د علم د زده کړې په غرض په اصحاب صفه کې شامل شو، له همدې امله يې له رسول اللهﷺ څخه (٥٣٧٤) حديثونه روايت کړي دي.

دغه جليل القدر صحابي په تقوی او پرهېزگارۍ کې مشهور او د قوي ذکاوت خاوند و چې د هجرت په اته پنځوسم (٥٨) کال کې وفات شو.

**د ځينو کلمو معناوې**

١_الإِيمَانُ: باور او د زړه کلك تصديق.

٢_بِضْعٌ: په عربي ژبه کې له دريو څخه تر نهو پورې عدد ته وايي.

٣_شُعْبَةً: برخه.

٤_أَفْضَلُهَا: غوره يې.

٥_ادْنَاهَا: کوچنۍ، او ټيټه يې.

٦_ إِمَاطَةُ: لرې کول

٧_الأَذَى: زيان رسوونکي شيان.

**د حديث ژباړه**

له حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: ايمان د څه د پاسه اويا خويونو څخه عبارت دی چې غوره يې د (لااله الا الله) کلمه ويل دي، ټيټه درجه يې له لارې څخه د زيان رسوونکو شيانو لرې کول دي او حياء د ايمان يوه برخه ده.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه په لارو کې د ضرري شیانو مثالونه وښیي.

## د حدیث ګټې

### ۱_ دایمان خصلتونه

پیغمبر ﷺ ایمان له داسې ونې سره تشبیه کړې چې ډېر ښاخونه ولري، ځینې یې اوچت، ځینې یې متوسط، او څه یې ټیټ وي، دا په دې معنا چې ایمان له ډېرو خصلتونو او خویونو څخه عبارت دی چې د ژوند له اوچتې سطحې څخه پیل او د ژوند تر ټیټې سطحې پورې ځانګړي احکام او سپیڅلې لارښوونې لري چې د بېلګې په ډول یې په دې حدیث کې د عقیدې په برخه کې کلمه طیبه، د ټولنیز ژوند په برخه کې د لارې پاکول، او د اخلاقو په برخه کې د حیاء ذکر راغلی دی.

### ۲_ د توحید کلمه

د توحید کلمه د (لا إله إلا الله محمد رسول الله)څخه عبارت ده چې د الله ﷻ په الوهیت او وحدانیت دلالت کوي، د ټولو ادیانو او پیغمبرانو د دعوت اساس او بنسټ په دې مبارکه کلمه ولاړ دی، نو پر هر مسلمان لازم دي چې د دې کلمې په معنا ځان پوه کړي، پر غوښتنو یې عمل وکړي او تر سیوري لاندې یې ژوند تېر کړي. (لا إله إلا الله) یوازې د ژبې کلمه نه ده او نه یوازې مفکوره ده، بلکې په الله ﷻ د ایمان عنوان دی، علم او عمل دی، د عقیدې، شریعت او د ټولنې د هوسا ژوند د متضمن نظام نوم دی.

### ۳_ د لااله الا الله فضیلت

(لااله الا الله) داسېستره کلمه ده چې په ویلو یې انسان د اسلام په مبارک دین کې داخلېږي، له ټېرو ګناهونو څخه داسې پاکیږي، لکه: چې له مور څخه نوی زیږېدلی وي او له هلاکېدو څخه ژغورل کیږي. پیغمبر ﷺ فرمایي: « مَنْ كَانَ آخِرُ كَلاَمِهِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ ».[۱]

**ژباړه:** د چا چې اخرنی وینا (لااله الا الله) وي جنت ته به داخل شي.

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «لو أنَّ السماوات السَبعَ والأرضين السبعَ، وضْعنَ فِي كفةٍ ووضعت لا إله إلا الله فِي كفة مالت بهن لا إله إلا الله»[۲]

---

۱ – سنن أبی داود.

۲– الدعاء للطبراني

**ژباړه:** که چېرې اووه اسمانونه او اووه طبقې ځمکه دتلې په یوه پله کې واچول شي او د (لااله الاالله) کلمه د تلې په بله پله کې واچول شي، نو هرومرو به کلمه طیبه پرې درنه وي.

**٤ـ د (لااله الا الله) غوښتنه:**

د دې کلمې غوښتنه په الله ﷻ، د هغه پر ملایکو، د هغه په رسولانو او د هغه ﷻ پر کتابونو ایمان درلودل دي. همدا راز د الله ﷻ او د هغه دلېږل شوي پیغمبر ﷺ اتباع او پیروي کول، یوازې د الله ﷻ څخه وېره او د هغه سره مینه، د مافوق الاسباب امید یوازې د الله ﷻ څخه کول، له الله ﷻ څخه د حاجتونو غوښتل، یوازې الله ﷻ ته عاجزي او سر ټیټول، د هغه د نعمتونو شکر اداکول او د مصیبت پر وخت یوازې له هغه څخه مرسته غوښتل دي.

**٥ـ له لارو او سرکونو څخه د زیان رسوونکو شیانو لرې کول**

په نظافت او پاکوالي د اسلام سپېڅلي دین ډېر ټینګار کړی او هغه یې د ایمان نیمایې برخه ګڼلې ده. د دې لوست په حدیث شریف کې د لارو پاک ساتلو ته د ایمان یوه برخه ویل شوې ده چې دا د چاپېریال د پاک ساتلو په ارزښت دلالت کوي.

د دې حدیث شریف په بنسټ د هر مسلمان دا دنده ده چې د لارو په پاک ساتلو کې هڅه وکړي او له هر هغه څه څخه چې لارویانو ته د زیان رسولو او د لارې د ککړتیا لامل ګرځي ځانونه وساتي.

**٦ـ حیاء د ایمان یوه برخه ده**

حیاء له داسې خصلت څخه عبارت ده چې انسان له ناوړو کارونو، سپکو عادتونو او پوچو ویناوو څخه ژغوري، حیاء، ځکه د ایمان برخه ګڼل شوې چې د حق لورې ته بلنه کوي او د خیر خوا ته انسانان هڅوي.

حیا ټوله خیر ده پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ»

**ژباړه:** حیا ټوله خیر ده.

خوکه چېرې حيا د زده کړې مانع وګرځي، يا د خپل حق د غوښتلو په لاره کې خنډ شي او يا هم د حق ويلو مانع وګرځي، نو بيا دا حيا نه، بلکې د انسان په کمزورۍ دلالت کوي.




۱ـ ابوهريره رضي الله عنه څوک و؟

۲ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

- **الإِيمَانُ**:
- **بِضْعٌ**:
- **شُعْبَةً**:
- **إِمَاطَةُ**:
- **الأَذَى**:

۳ـ د توحيد غوښتنې څه دي؟

۴ـ له لارې څخه د زيان رسوونکو توکو لرې کول څه اهميت لري؟ په اړه يې لنډ معلومات ورکړئ.



**کورنۍ دنده**

د حيا په اړه يوه لنډه مقاله وليکئ.

# تعصب

عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ –ﷺ– قَالَ: « لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ ». [سنن أبي داود]

## د راوي پېژندنه

نوم يې جبيراو د پلار نوم يې مطعم د قريشو له قبيلې څخه و، ډېر حليم او په علم الانساب کې يې خورا زياته پوهه درلوده. يو له هغو کسانو څخه و چې هغه پاڼه يې څيرې کړه کومه چې د بنو هاشم او بنو مطلب د مقاطعې په غرض قريشو ليکلې وه، هغه شخص و چې قريشو د بدر د بنديانو په سر د خبرو لپاره د استازي په توګه د پيغمبرﷺ حضور ته لېږلی و، کله چې د پيغمبرﷺ حضور ته راغی او د (الطور) سورت تلاوت يې واورېده، نودده په زړه يې زياته اغيزه وکړه، همااغه و چې د حديبې له سولې څخه وروسته يې اسلام ومانه. نوموړی د هجرت په (۵۸) کال کې وفات شو.

## د ځينو کلمو معناوې

۱–لَيسَ مِنَّا: زموږ له ډلې ( دين) څخه نه دی.

۲_ مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ: څوک چې قوم پرستۍ، نژاد پرستۍ. . . ته بلنه کوي.

۳_مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ: څوک چې د قوم پرستۍ، نژاد پرستۍ. . . لپاره جنګيږي.

٤_مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ: څوک چې د قوم پرستۍ، نژاد پرستۍ په لاره کې مړشي.

## د حديث شريف ژباړه

له جبير بن مطعمرضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: زموږ له ډلې څخه نه دی هغه څوک چې تعصب ته بلنه کوي، زموږ له ډلې څخه نه دی، هغه څوک چې د عصبيت په خاطر جګړه کوي او زموږ له ډلې څخه نه دی هغه څوک چې د عصبيت په فکر مړشي.

## د حديث حکمت

عصبيت ( تعصب کول له قبيلې، قوم، ژبې، نژاد، سيمې او داسې نورو سره) هم دجاهليت دزمانې راپاتې ميراث دی چې تل بشريت ګواښوي او آرامې تولنې ړنګوي، له همدې امله پيغمبرﷺ په کلکو الفاظو سره عصبيت ناروا او حرامه پديده ګڼلې ده، نو په هر مسلمان باندې لازمه ده چې د ايمان له غوښتنې سره سم د جاهليت له دې ناوړې پديدې سره په هر شکل کې چې وي مبارزه وکړي.

### د حدیث شریف گټې

### ۱ـ تعصب د جاهلیت شعار

له خپلې کورنۍ، قبیلې، نژاد، ژبې او سیمې څخه په ناحقه دفاع او ملاتړ کولو ته تعصب ویل کیږي.

له اسلام څخه مخکې به خلکو له خپلو خپلوانو، کورنیو او قبیلو څخه په حق او باطل دواړو حالتونو کې دفاع کوله، دا کار لوی زړورتوب او شجاعت ګڼل کېده، کله چې د اسلام مبارک دین څرګند شو، نو د نورو ظالمانه او جاهلانو رسمونو په څېر یې د قوم پرستۍ، او نژاد پرستۍ لمنه هم ور ټوله کړه، عصبیت یې کلک وغنده، خلکو ته یې امر وکړ چې په اسلام کې یو له بل سره د مرستې اساس یوازې پر عدالت او تقوی ولاړ دی.

الله ﷻ فرمایلي دي: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾[المائدة:۲]

**ژباړه:** او یو له بل سره په نېکۍ او تقوی کې مرسته وکړئ، د ګناه او ظلم په کارونوکې یوله بل سره مرسته مه کوئ.

### ۲ـ په اسلام کې د برترۍ معیار

د جاهلیت په دوره کې به خلکو د عصبیت په خاطر په پټو سترګو جنګونه کول، یو د بل پرخلاف به یې دسیسې جوړولې، په قوم، نسب او حسب به فخر کول لوی ویاړ بلل کېده، خو د اسلام سپېڅلي دین تواضع او د ژوندانه په چارو کې یوله بل سره مرسته او نېک عملونه د برترۍ معیار وټاکه او خلکو ته یې په ډاګه کړه چې په مسلمانانوکې هغه څوک غوره دی چې له الله ﷻ څخه ویریږي او د تقوی خاوند وي. الله ﷻ فرمایلي دي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُم عِنْدَ اللهِ أَتْقَاكُم﴾ [الحجرات: ۱۳]

**ژباړه:** بېشکه د الله ﷻ په وړاندې په تاسو کې هغه څوک ډېر غوره دی چې له الله ﷻ څخه ډېر ویریږي.

له تقوی څخه پرته په مال، نسب، حسب او د پلرونو او نیکونو په مېړانو ویاړ کول هېڅ ارزښت نه لري.

### ۳ـ عصبیت ته بلنه حرام عمل دی

اسلام عصبیت ته بلنه په بشپړه توګه حرامه کړې ده، که هغه بلنه قبیلوي رنګ ولري، که اقلیمي، سمتي او یا ژبنۍ بڼه ولري، ځکه چې عصبیت ته بلنه د نژادونو، قومونو او پرګنو ترمنځ کرکه او نفرت پیدا کوي، اسلامي ورورګلوي له منځه وړي، او انساني ټولنه چې بنیاد یې په یووالي ولاړ دی بربادوي، خلک د ځان غوښتنې په بد مرض اخته کوي.

د عصبيت د ريښو په ويستلو سره له ټولنې څخه ظلم او د نورو په حقوقو تجاوز کمېږي او د انسانانو ترمنځ د مرستې مينې اړيکې لا پياوړې کېږي. الله ﷻ دجاهليت د زمانې د ناخوالو او بې اتفاقی لرې کولو په هکله فرمايي:

﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا﴾[آل عمران: ١٠٣].

**ژباړه:** اود الله ﷻ هغه نعمت ياد کړئ کله چې تاسې په خپلو کې دښمنان وئ، بيا يې ستاسو د زړونو ترمنځ مينه واچوله، نودده د نعمت په برکت سره ورونه شوئ.

**٤ــ د عصبيت لپاره جګړه**

پيغمبر ﷺ جاهليت له بيخه ويستلی، د هغه زهرجنه ماده يې له منځه وړې، لکه: څرنګه چې عصبيت ته د بلنې ټول ډولونه يې حرام کړي، همدا راز د عصبيت په بناء جګړه کول يې هم حرام کړي دي.

پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: «ومن قُتِلَ تحت راية عمية، يغضب للعصبية، ويقاتل للعصبية فليس من أمتي»[(١)]

ژباړه: څوك چې د عصبيت د بيرغ لاندې مړ شي، څوك چې د عصبيت په خاطر په غوسه کيږي او څوك چې د عصبيت په لاره کې جنګيږي زما له امت څخه نه دی.

**٥ــ د جاهليت مرګ**

څوك چې په پټو سترګو د عصبيت په خاطر په ژبه، لاس او نورو وسيلو سره مبارزه او جګړه کوي، په دې لاره کې مړ شو، نو د ده مرګ د جاهليت د زمانې د مړو په څېر ناوړه مرګ دی.

**٦ – د جاهليت له عصبيتونو سره مبارزه.**

د دې لوست د حديث شريف او د قرآن کريم او د پيغمبر اکرم ﷺ د سنتونو د نورو نصوصو په بنسټ، له هر ډول عصبيتونو سره (که هغه قومي، سيمه ييز، ژبني، نژادي او داسې نور وي) جهاد او مبارزه کول د هر مسلمان دنده او شرعي رسالت دی، ځکه عصبيت ډېره خطرناکه او وژونکې ناروغي ده چې په ټولنه کې د امنيت ټينګښت او اسلامي وروګلوي کمزورې کوي او د خلکو تر منځ د دښمنيو او کړکېچ پيدا کېدلو لامل ګرځي.

١ – رواه مسلم

**فعالیت**

د ښوونکي په مرسته دې زده کوونکي د جاهلیت د زمانې د شخړو او جنګونو په هکله معلومات سره شریک کړي.




۱. د حدیث راوي څوک دی معرفي یې کړئ.
۲. لاندې کلمې معنا کړئ:
ا_ لَيْسَ مِنَّا:
ب_مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ:
ج _ مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ:
د _ مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ:
۳. قوم پرستي د اسلام له نظره څه حکم لري؟
٤. که څوک د عصبیت په خاطر جنګیږي او په دې لاره کې مړ شي، د ده مرګ د اسلامي شریعت له مخې څه حکم لري؟



**کورنۍ دنده**

د لوست حدیث په یادو زده کړئ.
(په اسلام کې د برترۍ معیار) تر عنوان لاندې لس کرښې مقاله ولیکئ.

شلم لوست

# د مؤمن شان (حالت)

عن صهيب بن سنانٍ – رضي الله عنه –، قَالَ: قَالَ رسولُ الله – ﷺ – «عَجَباً لأمْرِ المُؤمنِ إنَّ أمْرَهُ كُلَّهُ لَهُ خيرٌ وليَسَ ذلِكَ لأَحَدٍ إلا للمُؤْمِن: إنْ أَصَابَتْهُ سَرَّاءُ شَكَرَ فَكانَ خَيراً لَهُ، وإنْ أصَابَتْهُ ضرَاءُ صَبَرَ فَكانَ خَيْراً لَهُ». [رواه مسلم]

### د راوي پېژندنه

نوم يې صهيب الرومي د پلار نوم يې سنان بن مالك دى، لاكوچنى و چې روميانو د موصل په ځينو برخو حمله وكړه او دى يې له ځانه سره په اسارت بوت، د روميانو په منځ كې رالوى شو، له دې كبله په رومي مشهور و. له لومړنيو مؤمنانو څخه و.
په ټولو غزاګانو كې يې له رسول اللهﷺ سره ونډه اخيستې وه. د هجرت په اته دېرشم (٣٨) كال په مدينه منوره كې وفات شو.

### د ځينو كلمو معناوې

١. عَجَباً: تعجب دى (يعنې زه تعجب كوم)
٢. لأمْرِ المُؤمنِ: دمؤمن حالت( ژوند) ته.
٣. إنَّ أمْرَهُ كُلَّهُ لَهُ خيرٌ: دده ټول ژوند دده لپاره خير دى.
٤. إنْ أَصَابَتْهُ سَرَّاءُ: كه ورته خوشحالي ورسيږي.
٥. إنْ أصَابَتْهُ ضرَّاءُ: كه ورته زيان اوتكليف ورسيږي،
٦. فَكانَ خَيْراً لَهُ: نودده لپاره خير دى.

### د حديث شريف ژباړه

له صهيب رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي: د مؤمن حالت د تعجب وړ دى! دده ټول ژوند دده لپاره خير دى چې دا خير د هيچا لپاره نشته خو يوازې د مؤمن لپاره دى. كه خوشحالي ورته ورسيږي شكر باسي، نو دا ورته خير دى اوكه ضرر او يا كوم تكليف ورته ورسيږي، نو صبر پرې كوي چې دې كې هم د ده لپاره خير دى.

### د حديث شريف حكمت

هر انسان په ورځني ژوند كې له مختلفو حالاتو سره مخ كېږي، كله خوښي او سوكالي، كله پرېشاني او تكليفونه چې دا دواړه حالته اكثره د انسان په عادي ژوند مستقيماً منفي اغېز لري او په ډېرو وختونو كې د باطني ناروغيو لامل ګرځي، لكه ځان لوى ګڼل، غرور او داسې نور همدا راز ځينې وخت ناهيلي، اندېښنې، د زړه نا آرامي او داسې نور حالات ورته پيښيږي.

پیغمبرﷺ په دې حدیث کې د دغو دواړو ډولو ناروغیو د درملنې لپاره دوه مهم بنسټونه ښودلي دي: یو دا چې د خوښۍ او نعمت پر مهال د الله ﷻ شکر پرځای کول او دویم د ستونزو او پرېشانۍ پر مهال له صبر او زغم څخه کار اخیستل دي. که چېرې انسان دغه دوه لوی خویونه په خپل ژوند کې پلي کړي، نو نه یوازې دا چې د ژوند هره شېبه به یې په راحت او ډاډ تېرېږي، بلکې د ژوندانه په هر ډګر کې به تل بریالی وي.

**د حدیث شریف ګټې**

**۱ـ انسان ازمویل کېږي**

انسان د ژوند په هره شیبه کې تر آزمیښت لاندې وي، کله د خیر او راحت په آزموینه کې وي، لکه: ښه روغتیا، مال، اولاد. . . او نور، او کله د کړاوونو، لکه مرګ، مرض، بېوزلي او داسې نورو ستونزو سره مخ وي. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَنَبْلُوكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً﴾ [الأنبياء: ٣٥]

ژباړه: او موږ په بدو، او ښو (حالاتو کې) ستاسې آزمیښت کوو نوڅوک چې په الله ﷻ ایمان نه لري ارو مرو په دغه آزموینه کې له ناکامۍ او بد مرغۍ سره مخ کېږي، یوازې مؤمن دی چې په الله ﷻ د کلک ایمان له برکته په دغه ازمیښت کې بریالي کېږي، دا ځکه چې مؤمن په دې کلک باور لري چې خیر او شر یوازې د الله ﷻ له لوري دي، په هر حالت کې خپل کارونه الله ﷻ ته سپاري او له هغه څخه مرسته غواړي.

**۲ـ د نعمت او خوښۍ حالت**

ښه ژوند د الله ﷻ هغه ستر نعمت دی چې له کبله یې د بنده زړه خوشحالیږي. خوشحاله ژوند یوازې په شتمني او مالدارۍ پورې تړلی نه دی، بلکې د الله ﷻ نور معنوي نعمتونه هم شته چې انسان ورته اړتیا لري، لکه امنیت، روغتیا، وخت او داسې نور. بنده ته ښایي چې ورباندې خوښي ښکاره کړي او د الله ﷻ شکر پرځای کړي.

**اـ مال او دولت**

د الله ﷻ له نعمتونو څخه یو نعمت سرمایه او شتمني ده، لکه: نقدې پیسې، د کر او کښت ځمکه، سوداګري، صنعت او داسې نور.

د مال او دولت له لارې انسان خپل دیني او دنیوي هدفونه ترلاسه کوي او هم د دنیا ښکلا او ښایست دی. الله ﷻ فرمايي: ﴿الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ [الكهف: ٤٦]

**ژباړه:** مال او اولاد د دنیایي ژوند ښکلاده.

**ب ـ روغتیا**

روغتیا هم د نورو نعمتونو په څېر ارزښتناک نعمت دی، روغ بنده په ډېره آسانۍ سره خپل دنيوي او اخروي کارونه سرته رسوي، خورا زيات فضيلتونه يې په برخه کېږي، د نورو نعمتونو ښه احساس کوي او ورڅخه خوند اخلي بالعکس ناروغ انسان د هر ډول نعمت له احساس څخه محروم وي. پيغمبرﷺ يوه سړي ته داسې نصيحت وکړ: «اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْل خَمْس, شَبَابك قَبْل هَرَمك, وَصِحَّتك قَبْل سَقَمك. . . . »[1]

**ژباړه:** پنځه شيان د پنځو نورو د راتلو څخه مخکې غنيمت وګڼه: خپله ځواني د خپل زړښت له راتلو څخه مخکې غنيمت وګڼه، خپله روغتيا له ناروغۍ څخه مخکې غنيمت وګڼه. . . . او داسې نور.

**ج ـ امنيت**

امن او امنيت د الله ﷻ له ارزښتناکو نعمتونو څخه داسې نعمت دی چې د انسان ژوند، کورنۍ، مال او عزت مادي او معنوي مصالح په کې له ګواښونو څخه خوندي وي.

نور نعمتونه د دې نعمت تر سيوري لاندې پايښت لري، که چېرې امنيت نه وي، نو انسان له هېڅ ډول نعمت څخه ګټه نه شي اخيستلای. الله ﷻ د مکې پر خلکو د خپلو پېرزوينو په لړکې يوه پېرزوينه د امنيت مسأله هم شمېرلې ده او فرمايلي يې دي: ﴿فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هَذَا الْبَيْتِ۝الَّذِي أَطْعَمَهُمْ مِنْ جُوعٍ وَآمَنَهُمْ مِنْ خَوْفٍ﴾ [قريش: ۳، ٤]

**ژباړه:** نو په کار ده (قريشو ته)چې د دې کور د پروردګار عبادت وکړي د هغه ذات چې دوی ته يې خوراک ورکړ پس له لوږې څخه، او امنيت يې ور په برخه کړ پس له وېرې څخه.

يعنې پر دوی لازم وو چې د امنيت د نعمت شکر يې ادا کړی وای او يوازې د يوه الله ﷻ عبادت يې کولای.

**د ــ فارغ وخت**

فارغ وخت هم د نورو نعمتونو په څېر خورا ستر نعمت دی، خو خلک ورڅخه غافل دي، په عبث تېرېدو يې هيڅ پروا نه کوي، حال دا چې د انسان او وخت ترمنځ يوه چوپه مسابقه

---

۱- المستدرک للحاکم

روا نه ده. تاواني او بدمرغه انسان هغه دی چې د ځان او نورو لپاره له وخت څخه ګټه پورته نه کړي.

### ۳ـ پر نعمتونو شکر ویستل

شکر د عربي ژبې لفظ دی، د نعمت تصور او د هغه څرګندونې ته وايې. ضد یې کفران دی چې له نعمت څخه سترګو پټولو او هېرولو ته ویل کیږي.

کله چې بنده ته کومه خوشحالي او خیر ورسیږي او په زړه کې په دې کلکه عقیده ولري چې دا هرڅه د الله ﷻ له خوا دي، بل څوک د خیر او شر مالک نـه دی او دغـه حقیقـت په ژبه او عمل کې څرګند کړي همدا شکر بلـل کېږي، خـو دا د شـکر ټیټـه مرتبـه ده او لوړه مرتبه یې کومه ټاکلې اندازه نه لري. د الله ﷻ پر نعمتونو شکر ویستل واجب دي.

### ۴ـ د شکر ډولونه

سره له دې چې د شکر ادا کول کومه ټاکلې اندازه نه لري، خو بیا هم ځینـې ډولونـه یـې په لاندې ډول بیانیږي.

#### آـ په زړه کې د شکر ادا کول

په زړه کې د نعمت تـصور او یادونـه داده چـې د نعمـت لـوروونکي ذات سـره د هغـه د رالیږلي کتاب او پیغمبر ﷺ سره د زړه له کومي مینه ولري او دغه مینه پـه عمـل کـې ثابتـه کړي، نو همدې ته په زړه کې د شکر ادا کول ویل کیږي.

#### ب ـ په ژبه شکر ادا کول

د نعمتونو په مقابل کې د الله ﷻ ثنا او صفت بیانول د ژبې شکر بلل کیږي، په ژبه د شـکر ادا کول د زړه هغه احساسات بیانوي چې د بنده په زړه کې پراتـه دي. پـه ژبـه د الله ﷻ د احسانونو شکر ادا کول، ځکه اړین دي چې له یوې خوا د احسانونو د حقیقي مالک حـق پرځای کول دي او له بلې خوا نورو ته د خپل ښه حالت ښکاره کول دي دا پـه دې معنـا چې د ټولو احسانونو او نعمتونو ښونکی او مالک یوازې یو الله ﷻ دی، له الله ﷻ پرته بـل هېڅوک د خیر یا شر واک نه لري، همدا راز د نعمتونو په لاس ته راوړلو کې بنـده هـېڅ واک نه لري، دا یوازې د الله ﷻ پېرزوینه ده او بس داسې نه، لکه: چـې قـارون ویلـي وو: ﴿قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَى عِلْمٍ عِنْدِي﴾ [القصص: ۷۸]

**ژباړه:** قارون وویل: دا خو ماته د هغې پوهې له کبله راکړل شوي چې زه یې لرم.

**ج ـ په اندامونو د شکر ادا کول**

په اندامونو، شکر ادا کول د الله ﷻ د نعمتونو قدرداني کول دي. د نورو شکرونو په پرتله دا ډول شکر ډېر ارزښتاک دی، ځکه د بدن په اندامونو شکر ویستل د شکر عملي بڼه ده او په شریعت کې زیات احکام داسې دي چې که عملي بڼه ونه لري، نو کوم اهمیت نه لري لکه: لمونځ چې د اندامونو صدقه او شکر تمثیلوي، که عملاً ادا نه شي، په زړه کې یې د کولو اراده هېڅ ارزښت نه لري.

**۵ـ د شکر ګټې**

شکر د الله ﷻ پر احسانونو له اعتراف څخه عبارت دی چې بنده یې له پوره ادا کولو څخه ناتوانه دی.

شکر ویستل د شکر کوونکي لپاره ډېرې ګټې او ښې پایلې لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

**اـ شکر د قیامت په ورځ د الله ﷻ د دیدار سبب دی**

له هرڅه لومړی شاکر بنده ته د قیامت پر ورځ د الله ﷻ دیدار په برخه کېږي. دا هغه لاسته راوړنه ده چې مسلمان یې تل هیله لري.

**ب ـ الله ﷻ ته د نژدېوالي احساس**

شاکر انسان د دې خبرې احساس کوي چې الله ﷻ د خپلو بندګانو څخه په ده احسان او مهرباني کړې ده، نو همدا شان هیله ده چې ده ته به دده د ګناهونو بښنه هم وکړي او توبه او عبادات به یې قبول کړي.

**ج ـ شکرمسلمان ته ډاډ اوروحي راحت وربښي**

د الله ﷻ پر نعمت شکر ویستل مسلمان ته تل پاتې ډاډ وربښي. کله چې بنده په دې خبره عقیده ولري چې د هرډول خیر او نعمت حقیقي مالک یوازې یو الله ﷻ دی، انسان یې یوازې د دې لپاره د دغه نعمت مجازي مالک ګرځولی چې د الله ﷻ له نعمت څخه په هغه شان ګټه واخلي، څرنګه چې الله ﷻ یې غوښتنه کړې.




۱ـ د حدیث راوي څوک دی؟ معرفي یې کړئ.

۲ـ شکر څه ته وایي، او په څو ډوله دی؟

۳ـ شکر ویستل څه ګټې لري؟


**کورنۍ دنده**

د لوست په هکله په خپلو کتابچوکې یوه لس کرښیزه مقاله ولیکئ.

# پر تكليفونو صبر

( د تير لوست دوام)

«. . . . . . . . . . . . . . . . . وإنْ أصَابَتْهُ ضرَّاءُ صَبَرَ فكانَ خَيْراً لَهُ »

دا يوځرګند حقيقت دى چې انسان په ژوند كې له ستونزو سره مخ كيږي، مالي او بدني زيانونه ورته اوړي، خو مسلمان دا ټول د الله ﷻ له لوري آزموينه بولي او په صبر او زغم سره يې مقابله كوي، د نن ورځې لوست مو د صبر په هكله دى.

**د صبر حقيقت**

كه چېرې مؤمن ته كوم ضرر، تكليف او غم ورسيږي، نو پرې صبر كوي، ژړا، چيغې او شكايت نه كوي، بلكې د مصيبت او غم اجر له الله ﷻ څخه غواړي، تل د ځان لپاره په مصيبت كې د استقامت دعا كوي چې په پايله كې الله ﷻ ورته اجر وركوي.

**دصبر اهميت**

په قرآن كريم او احاديثوكې مسلمان صبر او زغم ته هڅول شوى دى، لكه: چې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَاسْتَعِينوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلاةِ﴾ [البقرة: ٤٥] **ژباړه:** او مرسته وغواړئ له (الله ﷻ څخه) په صبر او لمانځه سره.

په بل ځاى كې فرمايي: ﴿إِنَّ اللهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ [البقرة: ١٥٣] **ژباړه:** بې شكه الله ﷻ (په مرسته كې) له صابرينو سره ملګرى دى. په بل ځاى كې فرمايي: ﴿وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ﴾ [البقرة: ١٥٥] **ژباړه:** او زېرى وركړه صبركوونكو ته. صبر د انسان له دوامداره مبارزې څخه عبارت دى، انسان تل د ډول ډول دښمنانو سره په مبارزه كې ښكيل وي. په دغه مبارزه كې د انسان برياليتوب په صبر پورې تړلې دى، يوازې صبر دى چې انسان پرې خپل هدف ته رسيږي، صبر او زغم د دښمن په مقابل كې د قوي ډال حيثيت لري، نو مؤمنانو ته ښايي چې د كړاوونو پر وخت صبر وكړي، او له بې صبرۍ څخه ځان وژغوري، ځكه چې الله ﷻ مسلمانان په صبرازمايي. الله ﷻ او پيغمبر ﷺ مؤمنانو ته په صبر امر كړى اوصبركوونكي يې ستايلي دي:

﴿وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ﴾ [البقرة: ١٧٧]

**ژباړه:** او مؤمنان هغه کسان دي چې په کړاوونو، رنځونو او د جګړې پر مهال صبرکوونکي وي.

**۷ـ د صبر ډولونه**

صبر په درې ډوله دی.

۱- صبر د الله ﷻ په طاعت.

۲ – صبر په مصیبت.

۳- صبر له معصیت څخه.

**۱ـ صبر په طاعت**

د الله ﷻ د اوامرو په پرځای کولو او له نواهیو څخه یې په ځان ژغورلو کې تکلیف او په بشري نفس باندې یوډول سختي راوستل دي. له دغې سختۍ سره باید داسې مقابله وشي، څو انسان پرخپل لوی دښمن برلاسی شي چې هغه نفس او شیطان دي. الله ﷻ فرمایلي دي: ﴿إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوءِ﴾ [یوسف: ۵۳] **ژباړه:** بیشکه نفس حتماً (انسان ته) په بدۍ امرکوي. همدا راز فرمایي: ﴿وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ [ص: ۲٦] **ژباړه:** اوپه هوس پسې مه ځه چې بیا به دې د الله له لارې څخه واړوي.

د شیطان په اړه فرمایي: ﴿إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا﴾ [فاطر: ٦] **ژباړه:** بې شکه شیطان ستاسې دښمن دی، نو په دښمنۍ یې ونیسئ.

دا درې واړه انسان ته ګمراهي او نفسي غوښتنې ښایسته کوي او د الله ﷻ له اطاعت څخه یې لرې کوي نو مسلمان ته لازم دي چې د مبارزې لپاره یې خپله ملا کلکه وتړي، ترڅو ورباندې غالب شي، نفس دې ته وادار کړي چې د الله ﷻ اوامرو ته غاړه کېږدي او هم خپل خواهشات د شریعت تابع کړي. په دې کار کې صبر، زغم او د سختیو ګاللو ته اړتیا ده، نو څوك چې خپل نفس د الله ﷻ د حکمونو تابع کړي او له ګناهونو څخه یې وژغوري، نو په حقیقت کې په خپل پټ دښمن برلاسی شو.

**۲ـ په مصیبتونو صبرکول**

په مصیبتونو صبر د الله ﷻ پرېکړو او فیصلو ته غاړه له ایښودلو او د مصیبت په هکله مخلوق ته د شکایت نه کولو څخه عبارت دی. کوم مصیبتونه چې انسا ن ته رسېږي ډېر زیات دي، چې ځینې یې په لاندې ډول دي.

**د خپلوانو او دوستانو پر مړينې صبر**

تر ټولو ډېر سخت غم او مصيبت د اولاد، مور، پلار او دوستانو مړينه ده، د دې خلکو د مرگ پر وخت صبر او زغم، ځکه ضروري دی چې په دې کې له خپل رب سره د انسان د اړيکو قوت او نژديوالی څرگندېږي.

**د خلکو په اذيتونو صبر**

دا شونې ده چې که چېرې انسان د داسې خلکو له ضرر سره مخ شي چې د شريعت او اخلاقو له حدودو څخه د باندې وي، په دې صورت او تر هغه ځايه چې له شرعي اصولو څخه مخالفت نه وي شوی هغه چا ته چې زيان او ضرر ورته رسېدلی وي بايد صبر وکړي او د هر راز ضرر په وړاندې د انتقام غوښتنه ونه کړي، خو دا بايد په ياد ولرو چې دلته صبر د تل لپاره د ظلم او ضرر منلو په معنا نه ده، بلکې له صبر څخه مراد د حلم او برده بارۍ له دايرې څخه نه وتل دي.

**د ناروغۍ په صورت کې صبر**

ناروغي داسې مصيبت دی چې هر انسان ورسره مخ کېږي، صبر کول پرې د مؤمن د گناهونو د رژيدو لامل گرځي. پيغمبرﷺ چې د ام العلاء پوښتنې ته ورغی او ورته يې وويل: «أبْشِرِي يا أم العَلاء، فإن مَرَضَ المُسلِمِ يُذهِبُ اللهُ به خَطَايَاهُ، كما تُذهب النار خَبَثَ الذهبِ وَالفِضةِ»[1]

**ژباړه:** خوشحاله شه اې ام العلاء! کله چې مسلمان ناروغ شي الله ﷻ د ده گناهونه داسې پاکوي، لکه: اور چې د سرو او سپينو زرو خيرې پاکوي.

**۳ـ صبر له معصيت څخه**

له الله ﷻ څخه د وېرې او د هغه د لويۍ په خاطر، د هغه پاك ذات څخه د حيا په نيت له گناهونو څخه د ځان ژغورل ، د هرډول ناروا او سرکشۍ څخه ځان ساتل له معصيت څخه صبر بلل کېږي.

---

۱ - أبو داود

له معصیت څخه صبر ځکه ضروري دی چې له ګناهونو څخه ځان ساتل په هر مسلمان فرض دي، نو په دې ډول په صبر سره مؤمن د خپل ایمان قوت ساتي، ځکه په ګناهونو او نا فرمانیو سره د مؤمن ایمان کمزوری کیږي.
مسلمان باید د حرامو، شهوتونو او ګناهونو په وړاندې مقاومت وکړي او د نفس او شیطان غوښتنو ته تسلیم نه شي، همدغه مقاومت د ګناهونو په وړاندې له صبر او زغم څخه پرته بل څه نه دي.




۱ـ صبر تعریف کړئ.
۲ـ د صبر اهمیت ووایاست.
۳ـ په ناروغتیا کې صبر او زغم کول څه ګټه لري؟
۴ـ له ګناهونو څخه د صبر کولو څو مثالونه ووایاست.



**کورنی دنده**

د لوست مهم موضوعات په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

دوه ويشتم لوست

# د مسلمان حقوقونه

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِﷺ قَالَ: « حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ». قِيلَ: مَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: « إِذَا لَقِيتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَإِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ وَإِذَا اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ وَإِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللَّهَ فَشَمِّتْهُ وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ ». [رَوَاهُ مُسْلِمٌ]

**د ځينو عبارتونو معناوې:**

١. لَقِيتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ: چې ورسره مخامخ شوې، نو سلام پرې واچوه.

٢. دَعَاكَ فَأَجِبْهُ: چې يې دمېلمستيا بلنه درکړه، نو قبوله يې کړه.

٣. اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ: چې درڅخه د نصيحت غوښتنه وکړي، نصيحت ورته وکړه.

٤. عَطَسَ فَحَمِدَ اللَّهَ: چې ورپرنجېده او (الحمدلله) يېوويل.

٥. فَشَمِّتْهُ: نوورته په (يرحمک الله ) دعا وکړه.

٦. مَرِضَ فَعُدْهُ: چې ناروغ شو، نو پوښتنه يې وکړه.

٧. مَاتَ فَاتَّبِعْهُ: چې مړشو، نو د جنازې لمانځه ته يې ورشه.

**د حديث ژباړه**

له حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: د يوه مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقونه دي. پوښتنه وشوه چې اې د الله رسوله! هغه کوم حقونه دي؟ پيغمبرﷺ وفرمايل: کله چې ورسره مخامخ شوې، نو سلام پرې واچوه، کله چې د مېلمستيا بلنه درکړي، نو هغه قبوله کړه، کله چې درڅخه د نصيحت غوښتنه وکړي، نو نصيحت ورته ورکړه او چې کله وپرنجيږي او الحمدلله ووايي، نو ورته په (يرحمك الله) دعا وکړه چې کله ناروغه شي پوښتنې ته يې ورشه او چې کله مړشو، نو د جنازې لمانځه ته يې ورشه.

**د حديث حکمت**

دغه حديث شريف د مسلمانانو يو پر بل باندې ځينې حقونه بيانوي چې د دې حقونو مراعاتول د ټولنې د وګړو تر منځ د وروروګلوۍ او مينې د اړيکو په ټينګښت کولو کې اساسي رول لوبوي، په هر مسلمان باندې لازمه ده چې د نورو خلکو حقونه وپېژني او په مراعاتولو سره يې په ټولنه کې د يووالي او وحدت د ټينګښت لامل و ګرځي.

**د حدیث ګټې اوحکمونه**

**۱- دمسلمان د حق پېژندنه**

له حق څخه مراد او مقصد هغه څه دي چې سرته رسول يې فرض، واجب، سنت او يا مستحب وي. دلته ورڅخه مطلب د مسلمانانو تر منځ د خواخوږۍ هغه اخلاقي نظام دی چې یو مسلمان د بل مسلمان د متقابل درناوي په بنا پرې مکلف دی.

**۲_ د سلام اچولو حق**

له ښو اخلاقو څخه یوه سلام اچول دي، کله چې یو مسلمان د بل مسلمان سره مخ شي باید په سلام ویلو سره خپله لیدنه پیل کړي.

غوره مسلمان هغه دی چې د سلام په اچولو کې لومړی شي. سلام اچول د اسلام خصوصیت، د پیغمبرﷺ سنت او ځواب ورکول یې واجب دي.

**۳ـ هغه ځایونه چې سلام پکې نه اچول کیږي**

په سلام اچولو کې سنت طریقه دا ده چې وړوکی به پر لوی سلام اچوي، پر لاره تېرېدونکی به پر ناست سلام اچوي، لږ خلك به په ډېرو سلام اچوي، خو ځینې داسې حالات شته چې سلام اچول پکې غوره نه دي لکه:

- پر لمونځ کوونکي.
- د قرآنکریم پر لوستونکي.
- د علم د زده کړې پر حلقه.
- پر واعظ او خطیب باندې.
- پرمؤذن چې په آذان مصروف وي.
- پر هغه چا چې په قضاء حاجت ناست وي، یا په حمام کې وي.
- د ډوډۍ خوړلو یا اوبو څښلو پر وخت، که چېرې سلام اچوونکی په خوراك کې ورسره ګډون نه غواړي.
- هغه څوك چې په ګناه یا په بې ګټې کارونو کې بوخت وي.

**٤_ د بلنې ( میلمستیا) منل**

که یو مسلمان بل مسلمان ته د کوم مناسبت په بنا لکه: واده، عقیقه او یا بې له کوم مناسبته د مېلمستیا بلنه ورکړي، نو پر بلل شوي لازم دي چې دعوت يې ومني، ځکه پیغمبرﷺ فرمايي: "مَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ". **ژباړه:** که څوك مو مېلمستیا ته دعوت کړي بلنه یې ومنئ.

دا ځکه چې د دعوت په منلو سره د مناسبت خوشحالي زیاتیږي، که مناسبت نه وي، نو د بلنې شکریه ترسره کیږي، که بلنې ته ځواب ور نه کړای شي د زړه د بدوالي لامل

ګرځي او نېکو اړیکو ته زیان رسېږي، خو که چېرې په مېلمستیا کې ناروا عمل ترسره کېده، نو مسلمان باید له داسې دعوت څخه ډډه وکړي او له ګناه څخه ځان وساتي.

**٥ـ نېکه مشوره ورکول**

که څوك له چا څخه په کارونو کې مشوره وغواړي، نو لازم دي چې ورته نېکه مشوره ورکړي. که چیرې په کولو کې یې ګټه وه باید ورته وهڅول شي او که پکې د ضرر ویره وه باید ورڅخه وژغورل شي. د مشورې ورکولو پر مهال باید داسې مشوره ورکړي چې د هغه دنیوي او اخروي سرلوړي پکې نغښتې وي. په کار ده چې په مشورې ورکولوکې د هر ډول غولونې، دوکه او غوړه مالۍ څخه ډډه وشي، ځکه چې دا په مشوره ورکولو کې خیانت دی.

**٦ـ عطسې (پرنجي) ته ځواب ورکول**

د پرنجي په ذریعه الله ﷻ د انسان له مغزو څخه زیان رسوونکي مواد بهر ته راوباسي چې دا په بنده باندې د الله ﷻ لوی احسان دی، بنده ته ښایي چې د الله ﷻ د دغه نعمت شکر ادا کړي او پر ژبه (الْحَمْدُ لِلَّهِ) ووايي. بل مسلمان ورور باید له اوریدلو سره سم ورته دعا وکړي، او ووايي: (يَرْحَمُكَ اللَّهُ) الله ﷻ دې پرتا ورحمیږي. له دې څخه وروسته پر پرنجي کوونکي لازم دي چې د خپل مسلمان ورور ځواب په (يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ) سره ورکړي، نوڅوك چې د پرنجي پر وخت د الله ﷻ ستاینه ونه کړي، نو د دعا مستحق هم نه دی، ځکه چې ده له دوو نعمتونو څخه ځان بې برخې کړ، یو د الله ﷻ د ستاینې (الْحَمْدُ لِلَّهِ) ویلو څخه او بل د مسلمان ورور له دعا (يَرْحَمُكَ اللَّهُ) څخه .

**٧ـ د ناروغ پوښتنه**

د مسلمان له حقونو څخه یو هم د ناروغۍ په حالت کې د ناروغ انسان پوښتنه ده خصوصاً که ناروغ د خپلوانو یا دوستانو څخه وي چې د دوی د ناروغۍ پوښتنه د نورو په نسبت ډېره ضروري ده.

د ناروغ لیدل او د هغه د حال پوښتنه ډېر لوی فضیلت لري. که څوك د ناروغ تر څنګ کیناست، پر ده د الله ﷻ خاص رحمت رانازلیږي او ملایکې ورته د مغفرت دعا کوي. که څوك د ناروغ پوښتنې ته ځي باید هغه ته تسلي او ډاډ ورکړي، هغه ته د روغتیا دعا وکړي او ورته پر مرض د صبر توصیه وکړي.

**٨ـ د مسلمان په جنازه کې برخه اخیستل**

یو له هغو وجایبو څخه چې مسلمان یې پر غاړه لري داده چې د بل مسلمان د نېکبختۍ په فکرکې اوسي. کله چې یو مسلمان مړشي، نو د هغه د اعمالو دروازه وتړل شي او د نورو دعاوو ته ډېر اړ شي، نو له دې امله پر نورو مسلمانانو د ده حق دی چې په اړه یې الله ﷻ ته سوال او زارۍ وکړي چې د ده ګناهونه ور وبښي او راتلونکی ژوند یې ښایسته کړ ي. د

مسلمان په جنازه کې په ګډون کولو سره د مړي او د مړي د خپلوانو حقوق ادا کېږي او هم په جنازه کې ګډون کوونکي ته لوی اجر په برخه کېږي. پیغمبرﷺ فرمايلي دي: «مَنْ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّه يَرْجِعُ مِنْ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ كُلُّ قِيرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ»[۱]

ژباړه: څوک چې د ايمان په بناء او د ثواب په نيت د مسلمان په جنازې پسې روان شي، تر هغې ورسره وي چې د جنازې لمونځ پرې وکړي او هم يې له دفن کولو څخه فارغ شي، نو بې شکه ده ته د سرو زرو د دوو دينارونو په اندازه ثواب په برخه شو چې د هر دينار وزن د احد د غره په اندازه دی او چاچې وربانديې د جنازې لمونځ وکړ، بيا ورڅخه له دفن کولو مخکې راستون شو، نو د يوه دينار په اندازه ثواب ورکول کيږي.

**فعاليت**

که يو مسلمان مړشي، پس له مرګه دکومو کارونو ثواب ورته رسيږي؟ زده کوونکي دې په ډله ييزه توګه سوال ځواب کړي.




۱ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

۱ ــ وَإِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللَّهَ:

ب ــ فَشَمِّتْهُ:

ج ــ وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ:

د ــ وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ:

۲ــ د سلام اچولو ګټې ووایاست.

۳ــ د ناروغ عيادت کوونکی بايد کوم کارونه وکړي؟

۳ــ د جنازې لمونځ څه حکم لري؟



**کورنۍ دنده**

د لوست حديث په يادو زده کړئ او د لوست ګټې په کتابچو کې وليکئ.

---

۱ - صحيح البخاري

# دوه مخی

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَجِدُونَ النَّاسَ مَعَادِنَ فَخِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقِهُوا وَتَجِدُونَ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ فِي هَذَا الْأَمْرِ أَكْرَهُهُمْ لَهُ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ فِيهِ وَتَجِدُونَ مِنْ شِرَارِ النَّاسِ ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَهَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ. [متفق علیه]

**د ځینو کلمو معناوې**

١_ **مَعَادِنَ:** د معدن جمع ده، کانونه.

٢_ **خِيَار:** غوره کسان.

٣_ **الْجَاهِلِيَّةِ:** له اسلام څخه مخکې زمانه.

٤_ **إِذَا فَقِهُوا:** چې پوهه او فقاهت تر لاسه کړي.

٥_ **أَكْرَهُهُمْ:** تر ټولو بد ګڼونکی.

٦_ **شِرَارِ:** د شریر جمع ده، د خیار ضد دی، بد خلك.

٧_ **ذَا الْوَجْهَيْنِ:** دوه مخی.

٨_ **هَؤُلَاءِ:** هغوی.

**د حدیث ژباړه**

له ابوهریره ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایي: تاسو به خلك د کانونو او معدنونو د زیړمو په څېر ومومئ، نو څوك چې له هغوی څخه له اسلام نه دمخه په جاهلیت کې غوره وو هغوی به په اسلام کې هم غوره وي، په دې شرط چې پوهه او فقاهت تر لاسه کړي. تاسو به د منصبونو او مسؤولیتونو په اړه غوره خلك هغه ومومئ چې ځان منصب او مقام ته رسول ډېر بد ګڼي، خو دا چې منصب او مقام ورته وسپارل شي او ده نه وي غوښتی. تاسو به تر ټولو شریر او بد خلك دوه مخي ومومئ چې ځینو خلکو ته په یو مخ ورځي او ځینو نورو ته په بل مخ.

## د حديث حکمت

په دې مبارك حديث کې رسول الله ﷺ لومړی هغه انساني لوړ ارزښتونه په ګوته کړي چې په هر وخت کې د انسانيت په خير، د ټولنې په ګټه او د ټولو په وړاندې غوره او مطلوب دي، بيايې هغه ناوړه صفات ذکر کړي چې د انساني لوړو ارزښتونو پر خلاف د انسانيت په زيان او دټولنې په ضرر دي، هر څوك يې بد او ناوړه ګڼي.

## د حديث شريف ګټې

### ۱ـ انسانان داسې دي لکه طبيعي زېرمې

رسول الله ﷺ انساني پرګڼې له طبيعي زېرمو او کانونو سره ورته بللې دي، فرمايي: «تَجِدُونَ النَّاسَ مَعَادِنَ» خلك به د طبيعي زېرمو په څير ومومئ چې ځينې يې اصيل او ځينې يې کم اصله وي، ځينې يې ډېر ارزښتناك او ډېر قيمتي وي، ځينې يې بيا ارزښت او قيمت نه لري، ځينې کانونه د سرو زرو وي، ځينې د سپينو زرو وي.

انسانان که چېرې په سمه توګه وروزل شي او په ګټورو لارو کې استخدام شي، نو په ټولنه کې به تر ټولو غوره اوبا ارزښته بڼه پيداکړي.

۲ـ که څوك له اسلام څخه مخکې هم د نېکو اخلاقو او انساني فضايلو خاوند وي او له اسلام راوړلو څخه وروسته هم دغه غوره خويونه په هغه کې موجود وي، نو د دې حديث شريف له مخې دغه انسان له غوره خلکو څخه شمېرل کېږي، د اسلام سپېڅلی دين هغو انساني غوره او نېکو خويونو ته چې د بشري فطرت له مخې په انسان کې پيدا شوي وي وده او پراختيا ورکوي.

### ۳ـ هغه څوك چې ديني پوهه ولري

د اسلام له نظره غوره والی هغه مهال بشپړ دی چې ديني پوهه ورسره ملګرې وي يعنې ديني پوهه د غوره والي اساسي برخه ده.

پيغمبرﷺ فرمايلي: «مَنْ يُرِدْ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ»[1]

ژباړه: چاته چې اللهﷻ دخير اراده وکړي، نو فقاهت او په دين کې پوهه ور په برخه کړي.

---

۱ - صحيح البخاري

**٤ـد منصب په اړه غوره خلك**

پيغمبرﷺ فرمايې چې د منصبونو او مسؤوليتونو په اړه غوره خلك هغه دي چې ځان منصب او مقام ته رسول تر ټولو بد ګڼي، ځكه چې يوخو په طبيعي توګه عهده او منصب تكليف او كړاو لري. خو تر ټولو غوره خلك هغه دي چې عهده او منصب يو امانت او مسؤوليت ګڼي، د هغه دحق اداكولو څخه په ويره كې وي او اندېښنه ورسره وي چې هسې نه دغه امانت ترې ضايع شي. خو كه چاته له غوښتنې او تمې پرته منصب او مقام ور وسپارل شي، نو په دې صورت كې منصب په غاړه اخيستل د غوره والي خلاف نه دى، نه په كې كوم ډول كراهت شته، بلكې ملا به ورته كلكه تړي او له خلكو سره په مشوره او دالله تعالى په توكل به يې پر مخ بيايې، يقينا چې الله تعالى به ورسره مرسته كوي رسول اللهﷺ فرمايې: «مَنْ ابْتَغَى الْقَضَاءَ وَسَأَلَ فِيهِ شُفَعَاءَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ وَمَنْ أُكْرِهَ عَلَيْهِ أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ مَلَكًا يُسَدِّدُه»[1]

**ژباړه:** چاچې قضا او منصب وغوښت، په واسطو او سپارښتونو يې ترلاسه كړ، نو خپل ځان ته به وسپارل شي، د اللهﷻ لخوا به مرسته ورسره نه كېږي، كه څوك دمنصب منلوته اړ كړاى شو او د مسلمانانو لخوا ور وسپارل شو، نو اللهﷻ به يې مرستې ته پرښتې راوليږي.

د اسلام له سياسي او حكومتي اخلاقو څخه دادي چې بايد د اهليت او كفايت له مخې منصب او عهدې ته وړاندې كړاى شي، نه داچې خلك خپله ورته په دروغو او رښتياوو كمپاين وچلوي. كه چاته منصب او څوكۍ د مسلمانانو د اعتماد پر اساس وركړل شوه، نو الله ﷻ به ورسره مرسته وكړي.

**٥ـدوه مخى انسان**

ذوالوجهين هغه چاته وايې چې هرې ډلې ته د هغوى دخوښۍ او خوشحالۍ خبرې كوي، ځان داسې ورته څرګندوي چې دى ددوى خواخوږى او له مخالفينو سره يې وران دى. چې دغه تعامل او چلند د منافقت، دروغو او غوړه مالۍ زېږنده ده.

د انسان په زړه او سينه كې چې نېك نيتونه او پخې ارادې وي، نو چلند او سلوك يې په عمومي توګه له ټولو سره اصولي، متوازن او يو شان وي.

---

١ - رواه الترمذي

دوه مخي ډېر بد صفت دی، دوه مخی انسان سربېره پردې چې په ټولنه کې د نفاق، کرکې او دښمنۍ تخم کري، په خپله د ځان لپاره هم ډېرې نورې ناخوالې رامنځته کوي، خپل عزت له لاسه ورکوي او د نورو په وړاندې بې عزته او بې آبرو کېږي.

د اسلام مبارک دين دغه ناوړه صفت په کلکه غندلی او مسلمانان يې ترې په ټينګه منع کړي دي.

**٦_د دوه مخي انسان سزا**

امام بخاري (رح) له ابوهريره ﷺ څخه د رسول الله ﷺ دغه حديث هم نقل کړی.

«لا يَنبَغِي لِذي الوَجهينِ أنْ يَكونَ أَميناً» (١)

**ژباړه:** دا شوني نه ده چې له دوه مخي څخه امين شخص جوړ شي.

په همدې توګه د عمار بن ياسر څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې په دنيا کې دوه مخونه ولري د قيامت په ورځ به د اور دوه ژبې ولري.

**فعاليت**

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او د دوه مخی د بدو پايلو په اړه دې سره خبرې وکړي.




١. د حديث ژباړه ووایاست.

٢. د منصب په اړه غوره خلک څوک دي؟

٣. ذوالوجهين څوک دی؟

٤. د ذوالوجهين سزا بيان کړئ.



**کورنۍ دنده**

د سيرت له معتبر کتاب څخه د عمر بن عبد العزيز ( رح) دخلافت منلو کيسه ولولئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

---

١ – الأدب المفرد للبخاري

# د خوب آداب

عن الْبَرَاء بْن عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَتَيْتَ مَضْجَعَكَ فَتَوَضَّأْ وَضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ وَقُلْ: اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَهْبَةً وَرَغْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ فَإِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ. [صحيح البخاري]

**د راوي پېژندنه**

نوم يې براء، د پلار نوم يې عازب او د انصارو د اوس له قبيلې څخه و. پلار او زوی دواړه جليل القدره صحابه وو. د بدر د غزا پر مهال د عمر د کموالي له کبله ورته پيغمبرﷺ په غزا کې د ګډون اجازه ورنه کړه، خو د هجرت په دريم کال يې د اُحد په غزا کې برخه واخيسته، د دې غزا په شمول يې د پيغمبرﷺ سره په څوارلسو غزاګانو کې برخه اخيستې وه. د هجرت په دوه اويايم (۷۲) کال د عبدالله ابن الزبيرﷺ د خلافت پر وخت په کوفه کې وفات شو.

**د ځينو کلمو معناوې**

١. مَضْجَعَكَ: ستا د خوب ځای.
٢. اضْطَجِعْ: ډېره ولګوه.
٣. عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ: په ښي اړخ باندې.
٤. أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ: سپارلی مې دی خپل ځان تاته.
٥. وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ: او پرېښی مې دی خپل کار تاته.
٦. وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ: او تکيه کړې مې ده خپله ملا تاته. (يعنې پرتا مې خپل ځان سپارلی).
٧. رَهْبَةً وَرَغْبَةً إِلَيْكَ: ستا له وېرې او ستا په هيله تاته مخه کوم.
٨. لَا مَلْجَأَ: د تېښتې ځای نشته.
٩. وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ: ستا له عذابه د پناه اخيستو ځای نشته، خو يوازې ته يې.
١٠. الْفِطْرَةِ: د اسلام په دين.

## د حدیث ژباړه

د حضرت براء بن عازبؓ څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ راته وویل: کله چې دې د خوب ځای ته د تللو اراده وکړه، نو د لمانځه د اوداسه په څېر اودس وکړه، بیا په ښي اړخ ډېه ووهه او دا دعا ووایه: اې الله ﷻ خپل ځان مې تا ته تسلیم کړی دی او خپل کار مې تاته سپارلی دی (یعني پر تا مې توکل کړی دی) او خپله ملا مې ستا ساتنې او حفاظت ته تکیه کړه په داسې حال کې چې ستا له عذابه وېرېږم او ستا د رضامندۍ امید لرم. نشته ځای د تېښتې، نشته دی خلاصون ستا له عذابه، مګر یوازې ته یې. ایمان مې راوړی په هغه کتاب چې تا نازل کړی دی، ایمان مې راوړی په هغه پیغمبر چې تا رالیږلی دی، که چېرې (په همدې شپه کې) مړ شوې، نو خاتمه به دې د اسلام په دین وي.

## د حدیث حکمت

په دې حدیث شریف کې نبي کریمﷺ د خوب ځینې اداب بیان کړي دي، اسلام د ژوند کولو لپاره بشپړ او هر اړخیز نظام او قانون دی، د بشر لپاره د ژوند په ټولو برخو کې ښکاره او ځانګړې لارښوونې لري، نو له دې امله دا د حیرانتیا خبره نه ده چې پیغمبر اکرمﷺ مسلمانانو ته د خوب په اړه لارښوونې کړې دي.

## د حدیث شریف ګټې او احکام

### ۱ـ خوب ته د بدن اړتیا

انسانان د ورځې له خوا کارکوي او د کار له امله یې بدن ستړی او ستومانه کېږي، جسم یې آرامۍ ته اړتیا پیداکوي، الله ﷻ د خپلو بندګانو د راحت لپاره شپه رالیږلې ده چې په کې ویده شي، ترڅو ستړتیا یې ختمه او بدن یې د سبا دکار لپاره چمتو وي. الله ﷻ فرمايي: ﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ﴾ [یونس: ٦٧]

ژباړه: الله ﷻ هغه ذات دی چې پیدا کړې یې ده، شپه ستاسې لپاره چې آرام پکې وکړئ.

خوب د الله ﷻ نعمت دی، پکار ده چې د دې نعمت شکر پرځای کړو د دې نعمت د شکر ادا کول، په دې کې دي چې مسلمان د خوب پر وخت د خوب آداب مراعات کړي.

### ۲ـ خوب هم عبادت کېدای شي

سره له دې چې خوب انساني مهمه اړتیا ده، خو که چېرې مسلمان په دې نیت ویده شي چې د الله ﷻ عبادت او بندګۍ لپاره یې بیا ذهن اوجسم تازه والی پیداکړي، ترڅو د

الله ﷻ عبادت په ښه شان ترسره کړي، په مسنونه طريقه ويده او بيا راپاڅيږي، نو په دې صورت کې خوب چې يو عادت دی، په عبادت بدليږي.

### ۳ـ له ويده کېدو څخه مخکې اودس کول

خوب ډېر آداب لري چې ځينې يې په دې حديث شريف کې ذکر شوي دي چې يو يې له خوب څخه مخکې اودس کول دي. مسلمان ته په کار ده چې په طهارت او اوداسه ويده شي، ترڅو په خوب کې د شيطان له شر او وسوسو څخه په امن کې وي.

### ۴ـ په ښي اړخ ويده کېدل

د خوب له آدابو څخه دا هم دي چې بايد بنده په ښي اړخ ويده شي او پړ مخې ويده کېدل مکروه دي.

### ۵ـ د ويده کېدو پر وخت مسنون اذکار لوستل

کله چې مسلمان د ويده کېدو اراده وکړي، بايد مسنون اذکار ولولي، لکه: د **آية الکرسي** لوستل، د اخلاص سورت او د معوذتينو لوستل او داسې نور صحيح اذکار چې د احاديثو په کتابونو کې ذکر شوي دي، کله چې له خوبه را پاڅيږي، نوبايد له خوب څخه د راپاڅېدو دعا ووايي، لکه: «الحَمْدُ لِلَّهِ الَّذي رَدَّ عَلَيّ رُوحِي، وَعافانِي فِي جَسَدِي، وأذِن لِي بذِكْرِهِ »[1]

. ژباړه: ثنا او ستاينه ده هغه ذات لره چې زما روح يې بيا ماته راوګرځاوه، زما بدن يې روغ وساته اوماته يې د خپل ذکر فرصت راپه برخه کړ دا ځکه چې خوب د مرګ په څېر دی، هرکله چې الله ﷻ له بنده څخه نيم روح واخلي، هغه ورته بيا وروبخښي، بنده لره ښايي چې شکر پرې وباسي.

### ۶ـ پر وخت ويده کيدل

د خوب له آدابو څخه دا هم دي چې انسان بايد پر وخت ويده شي او له بې خوبۍ څخه ځان وژغوري.

پيغمبر ﷺ د ماسخوتن له لمانځه څخه مخکې ويده کېدل او د ماسخوتن له لمانځه څخه وروسته مجلس کول بد ګڼل. البته که چېرې ناسته او مجلس د علماوو، نېکانو او اړو کسانو سره وي، يا د علمي مطالعې په خاطر وي، بيا کوم باک نه لري، په دې شرط چې د سهار لمانځه ته په پاڅېدو کې کوم خنډ رامنځ ته نه شي. پر وخت ويده کېدل ډېرې

---

۱ - الأذکار النووية

ګټې لري، يوه داچې په وخت ويده کېدلو کې د پيغمبرﷺ پيروي عملي کېږي بل دا چې د شپې په خوب سره ذهن او د بدن غړي پوره راحت مومي چې د ورځې خوب دغه خاصيت نه لري. همدا راز که څوک پر وخت ويده شي سهار له خوبه د پاڅېدو پر مهال بنده تر او تازه وي او لمانځه ته په مينه او آسانۍ سره تللای شي.




١ـ د حديث راوي څوک دی معرفي يې کړئ.

٢ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

- أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ:
- وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ:
- لَا مَلْجَأَ:
- وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ:
- الْفِطْرَةِ:

٣ــ پيغمبرﷺ صحابي ته د خوب کوم آداب ور ښودلي وو ؟

۴ـ پر وخت ويده کېدل څه ګټې لري؟



**کورنۍ دنده**

په خپلو کتابچو کې د خوب د آدابو په برخه کې لس کرښې مقاله وليکئ.

# اسلام د ژوندانه نظام

هر مسلمان پر دې باور لري چې الله تعالی زموږ پیدا کوونکی او څښتن دی، د بشر د لارښوونې لپاره یې وخت پر وخت پیغمبران استولي چې جناب حضرت محمد ﷺ تر ټولو وروستی پیغمبر دی، د اسلام بشپړ دین یې راوړی، څو خلکو ته سمه عقیده، غوره اخلاق او د ژوندانه د هرې برخې لارې چارې وښيي او حلال او حرام ورته بیان کړي.

اسلام د ژوندانه ټولو برخو ته ورشامل دی، لکه: څرنګه چې یې باورونه، خویونه او عبادات بیان کړي، همدا ډول د کورني ژوند، سیاست، اقتصاد، امنیت، تعلیم او د ژوند د ټولو برخو لپاره ځانګړی نظام لري.

په هر مسلمان لازمه ده چې د اسلام ټولې برخې وپېژني، باور پرې ولري او عمل ورباندې وکړي.

**فعالیت**

د قرآنکریم او سنتونو لاندینی هر یو عبارت د وګړو د ژوندانه په کومې برخې پورې اړه لري؟ ویې لولئ او په نوبت یکې خبرې وکړئ.

۱ - الله تعالی فرمايي: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ [النور:٥٦] لمونځ بر پا کړئ او زکات ورکړئ.

۲ – ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ﴾ [النحل:٩٠ ] بېشکه الله تعالی په عدل امر کوي.

۳ - ﴿وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ﴾ [انفال :٦٠] د دوی ( سره د جنګ ) لپاره هغه پیاوړتیا چې په توان کې مو وي برابره کړئ.

٤ - ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ﴾ [الشوری:٣٨] او د مسلمانانو چارې په خپل منځ کې په مشوره وي.

٥ - رسول الله ﷺفرمايي: «الحكمة ضالةُ المؤمن أينما وجدها فهو أحق بها» حکمت د مؤمن ورکه ده، هر چیرې یې چې بیامومي، دی تر نورو د هغې په لاس ته راوړلو ډېر حقداره دی.

ګرانو زده کوونکو ! موږ او تاسو د توحید د کلمې په منلو له الله تعالی سره دا تړون کړی چې د بندګۍ او د ژوند نظام به يې ستا منو او د بل چا نظریات او طرحې به چې د دین پر خلاف وي نه منو.

په قرآن کريم کې راغلي: ﴿أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى﴾ [القيامة:٣٦] آيا انسان گومان کوي چې سريله ( بې واگو ) دې خوشې کړای شي.

نو انسان د علم د کم والي له امله د الله تعالی له لوري لارښوونو ته اړتيا لري.

څرنگه چې الله تعالی په هر څه پوره علم لري او ټول انسانان د ده بندگان دي، نو هغه قوانين چې الله ﷻ موږ ته رالیږلي دي له نیمگړتیا او تېري څخه پاك دي او په هغو کې هېڅ ډول نیمگړتیا او تېری نشته.




١. د اسلام دين درې سترې برخې لري: عقيده، اخلاق او احکام، يو يو مثال د هر يوه لپاره بيان کړئ.
٢. (( د اسلام دين د ژوند د هرې برخې لپاره احکام لري )) دا عبارت شرحه کړئ.
٣. له کلمې طيبې سره د لوست اړيکه بيان کړئ.
٤. آيا له تاريخي پېښو څخه د انسانانو يو پر بل د ظلمونو مثالونه بيانولی شئ؟

# د اسلام اقتصادي نظام

د دې لپاره چې د اسلام اقتصادي نظام وپېژنو، نو بايد د هغه تعريف او بنسټيزې ځانګړتياوې بيان کړو.

**تعريف:**

د اسلام اقتصادي نظام د قرآنکريم او سنتونو له لارښوونو او د اسلام پوهانو له نظرياتو څخه عبارت دی چې د وګړو لپاره د مال د لاس ته راوړلو او مصرفولو لارې چارې بيانوي.

په قرآن کريم کې راغلي: ﴿لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ [النساء: ۲۹] په خپل منځ کې يو د بل مال په ناروا مه خورئ.

له پورتني آيت څخه جوتيږي چې وګړي مال درلودلی شي، په نورو لازمه ده، څو د هغه درناوی وکړي اوپه ناروا يې ورڅخه وانخلي.

همدا راز په قرآنکريم او سنتونو کې سود، قمار، رشوت او ټګي حرام ښودل شوي او د بيعې (پلورلو پېردولو) اجارې، شرکتونو او نورو معاملاتو لپاره احکام او شرطونه ټاکل شوي، د زکات، صدقاتو، بيت المال او ميراث په هکله په تفصيل سره احکام ښودل شوي، د امت علماوو د قرآنکريم او سنتونو دا لارښوونې شرحه کړې او د نورو مالي معاملاتو احکام يې هم د قرآنکريم او سنتونو په رڼا کې بيان کړي چې دا ټولې لارښوونې او احکام د اسلام اقتصادي نظام تشکيلوي.

**په اوسنۍ نړۍ کې مطرح اقتصادي نظامونه:**

په اوسنۍ نړۍ کې د اسلام پر اقتصادي نظام سربېره دوه نور اقتصادي نظامونه هم مطرح دي چې خلک يې پيروي کوي: کاپيتاليزم او سوسياليزم.

**کاپيتاليزم**

چې پانګوالي نظام او آزاد بازار هم ورته وايي د غربي کلتور اقتصادي اړخ دی چې وګړو ته په اقتصادي ډګر کې په زياته آزادۍ ورکولو ولاړ دی او په دې هکله د دولت

چارې محدودې ګڼي، د دې نظام پر بنسټ سود او قمار جواز لري او خلك كولاى شي چې له ډېرو لارو زياته پانګه لاس ته راوړي.

**سوسياليزم ( ټولنيز اقتصاد )**

دا نظام له وګړو څخه د آزاد كاروبار كولو حق اخلي، د توليد وسايل يوازې دولتي ګڼي، وګړو ته د خصوصي ملكيت درلودلو حق نه وركوي، ټول خلك بايد دولت ته كار وكړي او له دولت څخه د خپل زيار په اندازه مال تر لاسه كړي، د وګړو يو له بل سره مزدوري كولو ته اجازه نه وركوي.

**فعاليت**

زده كوونكي دې د پورتنيو معلوماتو په رڼا كې په لاندې صورتونو كې د درې واړو اقتصادي نظامونو نظر بيان كړي او څلور صورتونه دې نور هم په ټولګي كې مطرح كړي.

| عمل | د اسلام له نظره | د كاپيتاليزم له نظره | د سوسياليزم له نظره |
|---|---|---|---|
| ۱ – سود خوړل | | | |
| ۲ – له فرد سره ډريوري كول | | | |
| ۳ – دولتي ماموريت | | | |
| ٤ – زكات وركول | | | |




۱. د اسلام اقتصادي نظام تعريف كړئ.

۲. دكاپيتاليزم او سوسياليزم مهم عناصر راوپيژنئ.



**كورنۍ دنده**

د ښوونكي او د كلي د امام په مرسته د قرآن كريم درې اقتصادي توصيې په خپلو كتابچو كې وليكئ.

# د اسلامي اقتصاد ځانګړتیاوې

څرنګه چې په اوسنۍ نړۍ کې درې ډوله اقتصادي نظامونه مطرح دي، پانګوالي، سوسیالستي او د اسلام اقتصادي نظام، نو موږ باید د دې نظامونو سترې ځانګړتیاوې وپیژنو، ترڅو یې یو له بل څخه بېل کړای شو، دا ځانګړتیاوې په لاندې توګه بیانېږي:

**۱ – د اسلام اقتصادي نظام د اسلامي دین یوه برخه ده،** خو سرمایه داري او سوسیالستي نظامونه د بشر له فکر څخه راوتلي، په هغو کې دیني لارښوونو ته ځانګړې پاملرنه نه ده شوې.

**۲ – دوه ډوله ملکیت**

په اسلامي اقتصاد کې ملکیت په دوه ډوله دی، خصوصي ملکیت او ټولنیز ملکیت، هر وګړی کولای شي په روا لارو چارو د مال خاوند شي، همدا راز دولت هم ملکیت لري چې د بیت المال په نامه یادیږي، په اسلام کې نه په فرد باندې پر روا اقتصادي کړو وړو څه بندیز شته او نه پر دولت، په دې توګه که د خلکو مصلحت غواړي چې دولت باید په اقتصادي چارو کې شریک شي دا کار کولای شي، خو په سرمایه داري نظام کې اصل دا دی چې دولت باید یوازې امنیت راولي او اقتصادی کړنې ونه لري، سوداګري، تولید، ترانسپورټ، آبادي، تعلیم او کرنه باید ټول خصوصي وي.

په سوسیالیزم کې د دې پر خلاف پورتنۍ ټولې چارې باید دولت سرته ورسوي او وګړي باید یوازې له دولت سره په تعامل کې وي، هېڅوک باید خصوصي ملکیت ونه لري.

**فعالیت**

د کتابونو او د مضمون د ښوونکي په مرسته د رسول الله ﷺ او راشدو خلفاوو د زماني د بیت المال په هکله نور معلومات تر لاسه کړئ.

**۳ – اقتصادي مقیده آزادي**

د اسلام سپېڅلي دین کې هر وګړی اختیار لري، کوم کاروبار چې وغواړي، هغه سر ته ورسوي، په عامو حالاتو کې له دولت څخه اجازې اخیستلو ته اړ نه دی، نو په اقتصادي چارو کې آزادي لري.

خو دا آزادي مطلقه او بې واګو نه ده پرېښودل شوې، بلکې نورو ته د ضـرر د نـه رسـولو او له نورو سره د مرستې لپاره څه بنديزونه او مکلفيتونـه وربانـدې لګېـدلي، لکـه: د سـود، قمار او ټګۍ حراموالی او د زکات، عشر او ماليـاتو لزوم خو په سرمايه داري نظام کې فرد ته په اقتصادي چارو کې مطلقه آزادي ورکړل شـوې پـه سوسياليـستي نظـام کـې لـه فـرد څخه آزادي اخيستل شوې ده.

**٤ – ټولنيز خوندي توب**

په اسلام کې دولت د ټولنې په استازيتوب دنده لري چې د وګړو لپاره دومره کارونه پيـدا کړي چې د هغوی د خوندي توب لپاره بسنه وکړي، که يـو څـوک د مـرض، معيوبيـت، ماشومتوب او يا د زړښت له کبله د کار کولو توان ونـه لـري، نـو دولـت بايـد د هغـوی د خوندي توب لپاره دومره څه ورکړي چې لږ تر لږه يې ژوند وربانديې روان شي.

که څه هم په سوسياسستي نظام کې د ټولنيز خونديتوب اصل شته، خو په کاپيتالستي نظام کې دا مسأله د يوه اصل په ډول شتون نه لري، ځکه په دې نظام کې هېڅوک له بل سـره په مرسته کولو ملکف نه دي.




١ – د اسلامي، سرمايه داري او سوسيالستي اقتصادي نظامونو اړيکـې رابطـه لـه ديـن سـره بيان کړئ.

٢ – د غبرګوني ( خصوصي او دولتي ) ملکيت په هکله د درې ډوله مطرحو نظامونو نظـر بيان کړئ.

٣ – اقتصادي مقيده آزادي څه ته وايې ؟

٤ – ټولنيز خوندي توب تشريح او د درې واړو اقتصادي نظامونو نظر د هغه په هکله بيـان کړئ.

# د اسلامي اقتصاد ښيګڼې

دا منل شوې خبره ده چې په اسلامي اقتصادي نظامونو کې هغه غوره دی چې وګړو ته زياته ښيرازي او پرمختګ ورپه برخه کړي، له کړاوونو، ناخوالو او ظلمونو څخه يې وژغوري، ولسونه په ښه توګه له خپلو وسايلو ( ځمکې، معدنونو، اوبو ) څخه ګټه واخلي او خپل عايدات په عادلانه توګه په لومړيتوبونو کې ولګوي.

هغه اقتصادي نظام ناسم دی چې د پرمختګ مخه ونيسي او يا هم پانګې د محدودو خلکو په لاس کې وغورځوي چې عام ولسونه په خوښه او ناخوښه بيا د هغوی غلامان وګرځي، په پايله کې د وګړو تر منځ دښمنۍ راوپاروي او د ټولنې د وګړو تر منځ د حسد او بېلتون لامل وګرځي.

که څه هم د کاپيتاليزم لومړنی شعار چې د فرد آزادي ده په ظاهره ښه برېښي، خو په عمل کې يې نتيجه دا شوه چې د وګړو تر منځ يې په پانګو کې واټن زيات کړ، ځينې خلك د سود، قمار او نورو ناروا معاملو له کبله شتمن شول او ځينې نور د ډېرې بې وزلۍ له امله د مجبورۍ په حالت کې د هغوی تر اغېز لاندې راغلل، څرنګه چې په دې نظام کې د زکات او صدقاتو قانون نشته، د دولت واك هم محدود دی او د مالدارو او شتمنو خلکو مالونو کې تصرف نشي کولی، نو د پانګه والو او بېوزلو خلکو تر منځ واټن پيدا کيږي او په پای کې نا امني او دښمني خپريږي.

**فعاليت**

شتمني د لږو خلکو لاس ته په ورتلو سره، عام خلك د هغوی په وړاندې څنګه ځان مجبور ګڼي ؟ خبرې پرې وکړئ.

په سوسياليستي نظام کې څرنګه چې خصوصي ملکيت نشته او هر څوك دولت ته کار کوي، هيچا ته د هغه د عمل عوض نه ورکول کيږي، که لږ کار وکړي او که ډېر، که ښه کار وکړي، نوبت پکې راولي او که بې کاره، يوازې د کار په اندازه ورته امتياز ورکول کيږي، نو خلك کوښښ نه کوي او پر مختګ منځ ته نه راځي.

په اسلام کې د پورتنيو دواړو نظامونو عيبونه نشته، ناروا کارونه چې په لږ وخت کې د ډېرې سرمايې د لاسته راوړلو سبب ګرځي لکه سود اخيستل او قمار حرام ګڼل شوي دي، نو که يو څوك ډېر مال په روا توګه تر لاسه کړي، د هغه په مرګ د ده مال د

میراث د قانون پر بنسټ ووېشل شي هر چا ته لږ لږ ورسېږي، نو كه دا نظام په سمه توگه عملي شي د پانگه والو او بې وزلو تر منځ واټن كمېږي، د زكات او صدقاتو له امله د دوی تر منځ خوا خوږي او همدردي پيدا كيږي او په ټولنه كې د دښمنی پر ځای مينه ټينگيږي.

**فعالیت**

په قرآن كريم كې راغلي ﴿كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاء مِنكُمْ﴾ [الحشر : ٧ ] د دې لپاره چې (دا مال يوازې) ستاسو د غنيانو تر منځ لاس په لاس نه وي. د دې آيت په هكله په خپلو منځونو كې پرې خبرې وكړئ.

همدا راز په اسلام كې خصوصي ملكيت د پولو دننه شتون لري، خلك د خپل كار گټې په خپله تر لاسه كوي، نو په كار كې كوښښ او ابتكار كوي په دې توگه ټولنه د پرمختگ په لوري روانيږي له همدې كبله په نړۍ كې د سوسيالستي اقتصاد ستري ښېلگې په شوروي اتحاد كې دوه لسيزې وړاندې سقوط وكړ. له ۲۰۰۷ ميلادي كال څخه را په دې خوا سرمايه داري اقتصاد هم له سختو ستونزو سره مخ دی. سره له دې چې دا دواړه نظامونه اوس له خپلو بنسټيزو ځانگړتياوو څخه تېر شوي او د اسلامي اقتصاد لور ته د تجربو په كولو نژدې شوي، سوسياليستانو خصوصي ملكيت ومانه، كاپيتاليستانو دولتي ملكيت او په اقتصادي چارو كې يې د دولت فعال رول ومانه.




۱. د اقتصاد كوم ډول نظامونه بريالي او غوره دي او كوم ډول نظامونه ناكاره گڼل كيږي؟
۲. په سرمايه داري نظام كې ستره ستونزه دا ده چې دولت په اقتصادي چارو كې له مداخلې څخه منع شوی، د دې اصل ناوړه پايلې څه دي او اسلام په دې هكله څه حكم كوي ؟
۳. په اسلامي اقتصاد كې تر ډېرې اندازې پورې داسې تدابير نيول شوي چې د وگړو تر منځ پانگه عادلانه توزيع شي، په دې تدابيرو كې د ځينو نومونه واخلئ.

# د ميراث د علم اساسات

**د ميراث تعريف**

د ميراث علم هغه اصول او قواعد دي چې د هغو په وسيله د ميت (مړي) له متروکې څخه د هر وارث حقونه پيژندل کيږي.

**موضوع:** د ميراث د علم موضوع د ميت متروکه ده.

**غرض:** د دې علم غرض په متروکه کې د مستحقينو د حقونو پېژندل دي، ترڅو د متروکې هرمستحق د مړي له متروکې څخه خپله برخه واخلي او يو پر بل باندې ظلم و نه کړي.

**د ميراث د علم غوره والی**

د ميراث علم ته نيم علم ويل شوی دی، رسول الله ﷺ فرمايي: «تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَعَلِّمُوه فَإِنَّهُ نِصْفُ الْعِلْمِ...» [1]

ژباړه: د فرايضو علم (ميراث) زده کړئ او هغه نورو ته ور زده کړئ، ځکه هغه نيم علم دی.

**د ميراث ارکان**

ميراث درې ارکان لري چې له مورث، وارث او موروث څخه عبارت دي.

مورِث: هغه مړي ته ويل کيږي چې مال يا حق پريږدي.

وارث: هغه څوک دی چې د ميراث مستحق وي.

موروث: پاتې مال يا ترکې ته ويل کيږي.

د ميراث شرطونه: ميراث لاندې شرطونه لري.

۱ – د مورِث مړينه.

۲ – د وارث ژوند وروسته د مورث له مړينې څخه.

[1] – دغه حديث حاکم په خپل مستدرک کې ذکر کړی دی.

**په اسلام کې میراث**

له اسلام څخه مخکې عربانو، میراث هغه چاته ورکاوه چې وسله یې پورته کولی شوای او په جګړو کې یې ګډون کولای شوای، ښځو او ماشومانو ته میراث نه ورکول کېده، ښځې نه یوازې دا چې له میراث څخه بې برخې وې، بلکې دوی په خپله هم په میراث وړل کېدې او له خپلو ټولو حقونو څخه محرومې وې.

د اسلام د مبارك دین په راتلو سره، عدالت تامین شو، د ټولنې د خلکو تر منځ اړیکې د دوستۍ او ورورولۍ پربنسټ بنا شوې.

په اسلام کې میراث خپلوانو ته د نږدیوالي او اړتیا له مخې ورکول کېږي، نو په هغه صورت کې چې نږدې خپل موجود وي، لېرې خپل له میراث څخه محرومېږي، لکه لمسی چې د زوی د شتون په صورت کې له میراث څخه بې برخې وي.

د نارینه وو برخه، ځکه په میراث کې د ښځو له برخې څخه زیاته وي چې د نارینه وو اړتیاهم زیاته وي، هغوی د اولادونو او ښځونفقه په غاړه لري.

## د متروکې متعلق حقوق

مخکې یاده شوه چې د میراث د علم موضوع د مړي متروکه ده، د مړي په متروکې پورې لاندې څلور حقونه تړلي دي:

۱- د مړي تکفین او تجهیز:

تکفین یوازې کفن ورکولو ته وایې او تجهیز عام دی، ځکه تجهیز هر هغه څه ته ویل کیږي چې د مړي په ښخولو پورې اړه لري لکه کفن ورکول، قبر کندل، ښخول او داسې نور.

۲- د مړي پورونه:

که له تکفین او تجهیز څخه څه پاتې شي، د مړي پورونه به ورڅخه ادا کوي.

۳- د مړي وصیت:

که مړي وصیت کړی وي، نو د هغه وصیت به د قرض له ادا کولو څخه وروسته د پاتې متروکې په دریمې برخې کې جاري کیږي.

۴- د وارثانو حق:

له تکفین اوتجهیز، دین او وصیت څخه وروسته پاتې مال پر وارثانوباندې وېشل کیږي او وارثان په لاندې ډلو وېشل شوي:

ذوي الفروض(د فرض خاوندان): ذوي الفروض هغه کسان دي چې په قرآن عظیم الشان کې ټاکلې برخې لري.
عصبه: عصبه هغه خپلوان دي چې مړي ته يې دپلار له لوري نسبت کېږي او له ذوی الفروضو څخه پاتې مال دوی ته ورکول کیږي.
ذوی الارحام: هغه خپلوان دي چې ذوی الفروض اوعصبه نه وي، لکه: ماما.
دپورتنیو مستحقینو د نشتوالي په صورت کې د مړي مال، ذوي الارحاموته ورکول کیږي.
موصی له: چې په ټول مال ورته وصیت شوی وي او له پخوانیو وارثانو څخه یو هم موجود نه وي، نو ترکه ده ته ورکول کیږي.
بیت المال: د پورته ذکر شوو اشخاصو د نشتوالي په صورت کې د مړي مال بیت المال ته ورکول کیږي.




۱- د میراث د علم تعریف، غرض او موضوع ووایاست.
۲- د مړي متروکې پورې څو حقونه تړاو لري، بیان يې کړئ.
۳- له اسلام څخه پخوا په عربو کې د ښځو او ماشومانو د میراث حالت څه و؟
۴- که چیرې څوک د خپل ټول مال وصیت وکړي او مړ شي، په دې اړه څه ډول عمل ترسره کیږي؟
۵- د مړي وارثان په ترتیب سره بیان کړئ.

# د میراث په هکله قرآني لارښوونې (۱)

په قرآن کریم کې ډېر احکام په اجمالي ډول ذکر شوي او ځینې په تفصیل سره راغلي، له هغې جملې څخه د میراث احکام دي، الله ﷻ په خپل مبارک کتاب قرآن عظیم الشان کې د میراث احکام په پوره تفصیل سره په دریو آیتونو کې بیان کړي چې موږ یې دلته په دریو لوستونو کې له ژباړې او تفصیل سره بیانوو.

﴿يُوصِيكُمُ اللّهُ فِي أَوْلاَدِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنثَيَيْنِ فَإِن كُنَّ نِسَاء فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ وَإِن كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ وَلأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِن كَانَ لَهُ وَلَدٌ فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلأُمِّهِ الثُّلُثُ فَإِن كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلأُمِّهِ السُّدُسُ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ آبَآؤُكُمْ وَأَبناؤُكُمْ لاَ تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعاً فَرِيضَةً مِّنَ اللّهِ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيما حَكِيمًا﴾ [النساء: ۱۱]

**ژباړه:** ستاسې د اولادونو په باب الله تعالی تاسې ته لارښوونه کوي چې د یوه نارینه برخه د دوو ښځو په اندازه ده، که ( د مړي وارثان ) له دوو څخه زیاتې لونې وي، نو هغوی ته دې د ترکې له دریو نه دوه برخې ورکړای شي او که یوازې یوه لور وارثه وي، نو نیمایي ترکه د هغې ده.

که د مړي اولادونه وي، نو د هغه مور او پلار هر یو ته دې د ترکې شپږمه برخه ورکړل شي او که یې اولاد نه وي، وارثان همدا مور او پلار وي، نو مور ته دې دریمه برخه ورکړل شي.

که د مړي وروڼه او خویندې وي، نو مور به د شپږمې برخې حقداره وي ( دا ټولې برخې به ) هغه وخت بېلیږي چې د مړي وصیت پلی او پور یې ادا شي. تاسې نه پوهیږئ چې ستاسې د مور او پلار او ستاسې له اولاد څخه کوم یو د ګټې له پلوه درته ډېر نژدې دي، دا برخې الله ټاکلې دي، په یقیني توګه الله عالم او د حکمت څښتن دی.

**فعالیت**

د پورتني آیت ژباړه په دقیق ډول وګورئ چې د چا میراث پکې ټاکل شوي دي، د کومو شرطونو په اساس د خپلو ټاکلو برخو مستحق ګرځي.

**پورتنی آیت د لاندې کسانو برخې بیانوي:**

١ـ د نارینه اولاد برخه د ښځینه اولاد په پرتله دوه برابره ده.

٢ـ له زامنو څخه پرته ځانته د لوڼو برخه:

الف: نیمايي: که لور یوه وي.

ب: دوه دریمې: که لوڼه له یوې څخه ډېرې وي.

کتنه: که د لوڼو پر ځای ځانته خور یا خویندې وي، همدا برخې ورکول کېږي.

٣ـ د مور او پلار لپاره ټاکلې برخه:

الف: شپږمه: مور او پلار هر یو ته دمړي د اولاد (که نارینه وي یا ښځینه) د شتون په صورت کې.

ب: د مړي د اولاد د نه لرلو په صورت کې مور ته دریمه برخه ورکول کېږي او پلار عصبه ګرځي.

ج: د ورونو د موجودیت په صورت کې مور شپږمه برخه اخلي که پلار وي او که نه وي.[1]

**فعالیت**

پورتنی لیکنې ته وګورئ او د هر یو صورت لپاره د آیت برخه ذکر کړئ.




١- مور په کوم حالت کې دریمه برخه مال اخلي؟

٢- لور ته څه وخت نیمايي مال ورکول کیږي؟

٣- مور او پلار څه وخت د مال شپږمه برخه وړي؟

٤- پلار کوم وخت عصبه ګرځي؟



**کورنۍ دنده**

پورتنی آیت حفظ کړئ.

١ - که پلار وي ورونه میراث نه وړي، خو د مور برخه له دریمې څخه شپږمې ته راکموي، که پلار نه وي او اولاد هم نه وي، نو ورونه په خپله عصبه ګرځي، په دې حالت کې هم د مور برخه له دریمې څخه شپږمې ته راکمیږي.

# د میراث په هکله قرآني لارښوونې (۲)

د نساء سورت په (۱۲)آیت کې الله ﷻ فرمايي:

﴿وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم مِّن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلاَلَةً أَو امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ فَإِن كَانُوَاْ أَكْثَرَ مِن ذَلِكَ فَهُمْ شُرَكَاء فِي الثُّلُثِ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَآرٍّ وَصِيَّةً مِّنَ اللهِ وَاللّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٌ﴾

**ژباړه**

ستاسې ښځو چې څه پرېښي دي، د هغه نيمايي برخه تاسې ته رسېږي که اولاد يې نه وي، که يې اولاد وي بيا د ترکې څلورمه برخه ستاسې ده، البته که وصيت يې کړى وي د وصيت د پوره کېدو او پور له ادا وروسته.

ښځې به ستاسې د ترکې نه د څلورمې برخې حقدارې وي، که تاسې بې اولاده وئ، که ستاسې اولادونه وو بيا ستاسې د ترکې نه د هغوى اتمه برخه ده، وروسته له وصيت د پوره کولو نه چې تاسې وصيت کړى وي او وروسته د پور له ادا کولو نه.

او که هغه نارينه يا ښځينه (چې د هغه ميراث بايد وويشل شي ) بې اولاده هم وي، مور او پلار يې هم ژوندي نه وي، خو د (مور له طرفه) يې يو ورور يا يوه خور موجوده وي، نو ورور او خور هر يوه ته به شپږمه برخه رسېږي او که دوى له يوه نه زيات وي، نو د ټولې ترکې په درېمه برخه کې برخه وال دي، کله چې سرته رسيدلى وصيت پوره شي او پور ادا شي، په دې شان چې زيان رسوونکى نه وي، دا د الله له لوري حکم دى او الله ﷻ پوه باخبره او زغمناک دى.

**فعالیت**

پورتنی آيت وګورئ او لاندې موضوعګانې ترې راوباسئ.

۱ – د ښځې ټاکل شوې برخه د شرطونو سره.

۲ – د خاوند ټاکل شوې برخه له شرطونو سره.

۳ – پرته له دې دواړو د بل چا د میراث په هکله پکې څه ويل شوي؟ بيان يې کړئ.

پورتني آيت کريمه کې د لاندې کسانو برخې ذکر شوي.

۱ــ د ښځې لپاره په قرآن کريم کې دوه ډوله برخې بيان شوي.

الف: اتمه: د مړي د اولاد د شتون په صورت کې.

ب: څلورمه: د مړي د اولاد د نه موجوديت په صورت کې.

۲ــ د مېړه لپاره په قرآن کريم کې دوه ډوله برخې بيان شوي.

الف: نيمايې: د ښځې د اولاد د نه شتون په صورت کې.

ب: څلورمه: د ښځې د اولاد د شتون په صورت کې.

۳ــ د کلاله له ميراث څخه د مورني وروڼو او خويندو برخې.

کلاله: هغه نارينه يا ښځينه شخص ته ويل کېږي چې ژوندی پلار او اولاد و نـه لـري، د ميراث وېش يې په لاندې ډول دی.

الف: شپږمه: که مړی يو مورنی ورور يا خور ولري.

ب: دريمه: که مورني وروڼه يا خويندې او يا دواړه ډلې له يوه څخه زياتې وي.

کتنه: مورني وروڼه او خويندې د پورته ډول ميراث مړي په مال کې برابره برخه لري.




۱- ښځه له مېړه څخه څومره ميراث وړي؟ په تفصيل سره يې بيان کړئ.

۲- مېړه د ښځې په مال کې څومره حقدار دی؟روښانه يې کړئ.

۳- د ميراث وېش به له وصيت او دين څخه وړاندې تر سره کېږي که څنگه؟

۴- مورني اولاد د ژوندي مثال په ورکولو سره روښانه کړئ.

۵- د مورني اولاد ميراث د قرآني لارښوونو په رڼا کې بيان کړئ.

٦- مورني وروڼه څه وخت ميراث وړي؟



**کورنی دنده**

پورتنی آيت حفظ کړئ.

دوه دېرشم لوست

# د میراث په هکله قرآني لارښوونې (۳)

د النساء سورت په (۱۷۶)آیت کې الله جل جلاله فرمايي:

﴿يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلاَلَةِ إِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمْ يَكُن لَّهَا وَلَدٌ فَإِن كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ وَإِن كَانُواْ إِخْوَةً رِّجَالاً وَنِسَاء فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنثَيَيْنِ يُبَيِّنُ اللّهُ لَكُمْ أَن تَضِلُّواْ وَاللّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾

**ژباړه**

خلكك له تا څخه (د كلاله په باب) فتوى غواړي ووايه: الله ﷻ تاسې ته د كلالـه پـه هكلـه فتوى دركوي.

كه څوك بې اولاده ومري ( او پلار يې هم نه وي ) او د هغه يوه خور وي، نو هغه بـه د مړي نيمايي تركه واخلي، كه خور بې اولاده ومري، نو ورور به د هغې وارث وي.

كـه د مړي وارثـان دوه خوينـدې وي، نـو هغـوی بـه د تركـې لـه دريـو نـه د دوو برخـو حقدارې وي، كه ډېر وروڼه او خويندې وي، نو د هر نارينه به د هـرې ښځې پـه تناسـب دوه برابره برخه وي.

الله ﷻ تاسې ته حكمونه تشريح كوي چې تاسې لار وركې نـه شـئ او الله ﷻ پـه هـر شـي پوه دی.

**فعالیت**

د پورتني آيت په رڼا كې لاندې پوښتنې ځواب كړئ:

۱ – كلاله څه ته وايي ؟

۲ – يوه خور چې ځانته وي څومره ميراث وړي؟

۳ – كه خويندې له يوې څخه زياتې وي او ورور ونه لري، نو څومره ميراث وړي؟

٤ – وروڼه او خويندې كه سره يو ځای شي، ورور د خور په نسبت څومره برخه اخلي؟

د بې اولاده سړي يا ښځې چې مور او پلار يې هم مړه وي د ميراث وېش: داسې څوک که مورنی ورور، وروڼه، خور او يا خويندې ولري، نو د ميراث برخې يې په لاندې ډول دي.

۱ـ د خويندو برخې: که له پورته ډول ميرات څخه يوازې پلارنۍ خويندې پاتې وي، برخې يې په لاندې ډول دي:

الف: نيمايي: که چېرې د مړي نه يوازې يوه پلارنۍ خور پاتې وي.

ب: دوه دريمې: که د مړي خويندې له يوې څخه ډېرې وي.

۲ـ که له دې ډول مړي څخه پلارني[1] وروڼه او خويندې دواړه پاتې وي، نو د ميراث په وېش کې نارينه ته دوه او ښځينه ته يوه برخه ورکول کېږي.

د ميراث مړي ميراث په هغه صورت کې چې وروڼه او خويندې ورڅخه په ګډه پاتې وي ورور د خور دوه برابره برخه اخلي، يعني يو ورور په درې افغانيو کې دوه افغانۍ اخلي.

۳- که خور اولاد ونه لري، ورور يې وارث دی.




۱- کلاله چا ته ويل کېږي؟

۲- د هغې دريمې برخې خاوندان څوک دي چې سړي او ښځې پکې د ميراث په وېش کې برابر دي؟

۳- ورور د خور په اندازه څومره برخه اخلي؟

٤- د شپږمې برخې خاوندان په ګوته کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنی آيت حفظ کړئ.

---

۱ له پلارني ورور يا خور څخه دوه ډوله وروڼه او خويندې مراد دي، سکني او يوازې له پلار څخه.

# ذوي الفروض او د هغوی برخې

په قرآن کریم کې د ذوی الفروضو لپاره شپږ برخې بیان شوې دي:

۱- نصف (نیمه) $(\frac{1}{2})$

۲- ربع (څلورمه) $(\frac{1}{4})$

۳- ثمن (اتمه) $(\frac{1}{8})$

۴- ثلثان (دوه پردرې) $(\frac{2}{3})$

۵- ثلث (دریمه) $(\frac{1}{3})$

۶- سدس ( شپږمه) $(\frac{1}{6})$

د میراث په علم کې نصف، ربع او ثمن په لومړي ډول، ثلث، ثلثان او سدس په دویم ډول یادیږي.

ددې معلومو برخو خاوندان او مستحقین دولس (۱۲) کسان دي چې څلور یې نارینه او اته یې ښځینه دي.

د میراث په مسایلو کې د هریوه لپاره مختلف حالات دي او په بیلا بیلو حالاتو کې هر یوه ته بیله برخه ټاکل شوې ده. نو اړینه ده چې د هر یوه حالت په لنډ ډول ذکر شي، تر څو ګران زده کوونکي د میراث له مهمو او زیاتو پېښېدونکو مسایلو څخه خبرشي.

**فعالیت**

د ذوی الفروضو دا پورته څرګندې برخې له قرآن کریم څخه راوکاږئ

## د نارینه وو احوال

هغه نارینه چې معلومې برخې لري څلور تنه دي.

۱- پلار.

پلار درې حالته لري.

الف: که له پلار سره د مړي زوی یا د مړي د زوی زوی که څه هم تـرې راښـکته وي موجود وي، نو په دې حالت کې پلار ته سدس $(\frac{۱}{۶})$ ورکول کیږي.

ب: که له پلار سره د مړي لوریا دمړي د زوی لور (که څه هم ترې راښکته وي) موجـود وي، نو په دې حالت کې پلار ته سدس $(\frac{۱}{۶})$ او د عصوبت برخه دواړه ورکول کیږي.

ج: که د مړي اولاد (۱)(نارینه وي او که ښځینه) او یا له هغه نه کښته موجـود نـه وي، نـو په داسې حالت کې پلار یوازې عصبه دی او معلومه برخه په دې حالـت کـې نـه ورکـول کیږي، بلکې ټول مال وړي.

۲- صحیح نیکه

نوموړی د پلار د نشتوالي په صورت کـې د پـلار پـه ډول دی، خـو پـه څوصـورتونوکې ورسره توپیر لري چې د میراث په کتابونو کې یې تفصیل موندل کیږي.

که چیرې د مړي پلار او نیکه دواړه پاتې شي. د نیکه حق ساقط او مال ټول د پلار دی.

۳- اخیافي ( مورنی ) ورور او خور: څرنګه چې اخیـافي ورور او خـور د میـراث پـه وېش کې سره یو شان دي او کوم توپیر نه لري، نو د دواړو احوال یو ځـای ذکـر کیـږي که څه هم په حقیقت کې هر یو یې جلا صنف ګڼل کیږي او درې احواله لري:

الف: که یو اخیافي ورور یا یوه اخیافي خور وي برخه یې شپږمه $(\frac{۱}{۶})$ ده.

ب: که دوه یا زیات وي دریمه برخه $(\frac{۱}{۳})$ اخلي. نارینه او ښځې یې په استحقاق او تقسیم کې یو شان دي.

ج: که د مړي زوی یاله هغه نه ښکته پاتې شي اخیافي ورور او خور ساقطیږي.

۴- زوج (مېړه) دوه حالته لري.

---

۱ - د اولاد کلمه نارینه او ښځینه دواړو زیږندو ته شامله ده .

الف: که چېرې د هغه مړه شوې ښځه اولاد ولري، نو مېړه ته د ښځې د متروکې څلورمه ($\frac{1}{4}$) ورکول کیږي.

**فعالیت**

د میراث د آیتونو څخه هغه برخه ذکر کړئ چې د ښځې او خاوند میراث پکې له شرطونو سره ټاکل شوی.

ب: او که مړه شوې ښځه اولاد و نه لري، نومېړه ته یې نیمایې ($\frac{1}{2}$) متروکه ورکول کیږي.

**فعالیت:**

د نصف، ربع او ثلث خاوندان څوک دي ؟




١. د وارثانو لپاره ټاکل شوې برخې څو دي؟ بیان یې کړئ.
٢. پلار څو احواله لري؟ واضح یې کړئ.
٣. صحیح جد تعریف کړئ؟
٤. د اخیافي خویندو او وروڼو احوال ولیکئ.
٥. زوج څو احواله لري؟ بیان یې کړئ.

# د ښځینه ذوي الفروضو احوال

هغه ښځې چې ځرګندې برخې لري اته (۸) دي.

**(۱)ښځه (ماندینه).**

ښځه هم د مېړه په شان دوه حالته لري:

الف: که له مېړه څخه زوی یا لور پاتې نه وي. ښځې ته د مېړه له ما ل څخه څلورمه $(\frac{۱}{۴})$ برخه رسیږي.

ب: که له مېړه څخه زوی یا لور پاتې وي، ښځې ته د مېړه له مال څخه اتمه $(\frac{۱}{۸})$ برخه ور رسیږي.

که له مړي څخه له یوې نه زیاتې ښځې پاتې شي، دوی ټولې په همغه ټاکلې برخه $(\frac{۱}{۴})$ یا $(\frac{۱}{۸})$ کې سره شریکې دي.

**۲- لور**

لور درې حالته لري

الف: که له مړي څخه یوه لور پاتې شي د متروکې نیمایې $(\frac{۱}{۲})$ برخه په میراث وړي.

ب: دوو یا زیاتو لوڼو ته د متروکې دوه ثلثه $(\frac{۲}{۳})$ ورکول کیږي.

ج: که چېرې له مړي څخه زامن او لوڼې دواړه پاتې شي، نو بیا لوڼې عصبه ګرځي او یو ورور د دوو خویندو اندازه اخلي. دمثال په توګه: که یو هلک او یوه نجلۍ پاتې شي د متروکې $(\frac{۲}{۳})$ د هلك او $(\frac{۱}{۳})$ د نجلۍ حق کیږي.

**فعالیت:** پورتنی حالات عملاً په ټولګي کې تمثیل کړئ.

**۳- د زوی لور**

که له مړي څخه زوی اویا دوه لوڼې پاتې وي، نو د زوی لور له میراث څخه محرومېږي او په نورو مواردو کې مېراث ورکول کیږي چې تفصیل یې د میراث په کتابونو کې ذکر دی.

**۴- سکه خویندې (هغه چې د پلاراو موردواړو څخه وي)**

سکه خویندې پنځه احواله لري

الف: یوې ته نیمایې ورکول کیږي.

ب: دوه یا زیاتو ته ثلثان ($\frac{2}{3}$)ورکول کیږي.

ج: که سکه ورور ور سره وي عصبه کیږي او ورور د دوو خویندو برابره برخه اخلي.

د: که چېرې د مړي د زوی لور ور سره پاتې وي، دوی عصبه ګرځي.

هـ: که چېرې د مړي پلار پاتې شوی وي د خور حق ساقطیږي.

**۵- د پلار له خوا خویندې**

علاتي خویندې د اعیاني ورونو او خویندو د نه شتون په صورت کې د اعیاني خویندو په ډول دي، خو په ځینو مواردو کې فرق لري چې د میراث په کتابونو کې به تفصیل سره بیان شوي.

**٦- مور**

مور درې احواله لري

الف: مور هغه وخت سدس ($\frac{1}{6}$) اخلي چې د مړي زوی یا لمسی موجود وي که څه هم تـرې ښکته وي اویا دا چې دوې یازیاتې خویندې یا ورونه له هر حیثه چې وي موجود وي.

ب: د ټول مال ثلث ($\frac{1}{3}$) هغه وخت اخلي چې له پورته ذکر شوو اشخاصو څخه یـو هـم موجود نه وي.

ج: د پاتې مال ثلث ($\frac{1}{3}$) هغه وخت اخلي چې یو له زوجینو څخه ورسره وي او دا یوازې دا لاندې دوه صورتونه لري چې په دې ډول دي.

**۱- مثال:** چې ښځه مړه شي، میړه، پلار او مـور ورڅخـه پـاتې شـي، د ټـول مـا ل نیمـایې دمیړه، د پاتې مال دریمه برخه دمور او دوه دریمې یې په عصوبت دپلار کیږي.

اصل مسأله له: ۲ ضرب ۳ = ۶ درې برخې (نیمې د هغو ) د میړه لپاره اوله نیم څخه پـاتې مور ته ثلث یعنې یوه برخه او د پلار لپاره دوه برخې دي.

ښځه ۳ ضرب ۲=۶

مړی

| میړه | مور | پلار |
|---|---|---|
| ۳ | ۱ | ۲ |

**۲- مثال:** چې مېړه مړ شي، ښځه، پلار او مور ورڅخه پاتې شي، ښځې ته د ټول مال څلورمه، مور ته دپاتې مال دريمه او نور په عصوبت دپلار کېږي.

مېړه ۴

مړی

| ښځه | پلار | مور |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ۲ | ۱ |

په پورته دواړو مواردوکې مور يو د زوجينو له فرض څخه وروسته د پاتې مال دريمه برخه اخلي.

۷- جده (نيا): صحيح جده[1] ($\frac{۱}{۶}$) برخه ميراث وړي. د مور په شتون ټولې جدې ساقطيږي او د پلار په شتون يوازې د پلار له خوا نيا له ميراث څخه محروميږي.

د جدو نور احوال د ميراث په کتابونو کې موندل کيږي.

**۸- اخيافي خور**

د اخيافي خور حالات د اخيافي ورور په حالاتو کې ذکر شوي دي.




۱- د لور احوال بيان کړئ.

۲- زوجه څو حالته لري؟ واضح يې کړئ.

۳- اعياني خويندې څو احواله لري؟ بيان يې کړئ.

٤- مور څو احواله لري؟ واضح يې کړئ.

٥- آياجدات هر وخت د ميراث حق لرونکې وي او که څنګه؟

---

۱ _ صحيح جده هغې انې ته ويل کيږي چې مړي ته په نسبت کې يې فاسد جد راغلی وي، لکه: د پلار مور، يا د پلار د پلار مور يا د مور د مور مور ، او مور د پلار مور صحيح جده نه ده هغې ته رحمي يا فاسده جده ويل کيږي.

# عصبات

## د عصباتو د میراث قاعده

له مړي څخه د عصباتو د میراث استحقاق هغه ته د درجې د نژدېوالي او لېرې والي پر اساس ټاکل کیږي. هر څوک چې په درجه کې مړي ته نژدې وي لومړی حق د هغه دی او بیا ورپسې نژدې چې ترتیب یې په دې ډول دی.

۱- د مړي فرع یعنې زامن که څه هم ترې را ښکته وي.

۲- د مړي اصل یعنې پلار که څه هم ترې پورته وي.

۳- د مړي د پلار جزء یعنې وروڼه که څه هم ترې کښته وي.

۴- دمړي د نیکه جزء یعنې کاکا او زامن یې که څه هم ترې کښته وي.

که له مړي څخه داسې عصبه پاتې شي چې په مرتبه او درجه کې سره برابر وي. بیا د قرابت(نژدې والي او خپلوۍ) قوت اعتبار لري. یعنې چې له دوو خواوو له مړي سره قرابت ولري، هغه مقدم دی، له هغه نه چې له یوه پلوه قرابت ولري، لکه: وروڼه چې مړي ته په درجه او مرتبه کې یو برابر دي، خو په قوت او قرابت کې سره توپیر لري. مثلاً ځینې اعیاني وي او ځینې علاتي وي.

علاتي وروڼه د اعیاني وروڼو د موجودیت په صورت کې له میراث څخه محروم دي، ځکه اعیاني قرابت له علاتي نه قوي دی. حتی که اعیاني خور د مړي د لور په سبب عصبه شوې وي، هم د علاتي وروڼو د میراث مانع ګرځي، ځکه چې قرابت یې له علاتي ورور څخه قوي دی.

**فعالیت**

د عصباتو ترتیب په ژوندي مثال سره روښانه کړئ.

## حجب

حجب په لغت کې منع ته وايي او په اصطلاح کې حجب دې ته وايې چې یو ټاکلی شخص د بل ټاکلي شخص د موجودیت له کبله له ټول او یا یوې برخې میراث څخه بې برخې شي.

حجب په دوه ډوله دی.

۱- دنقصان حجب.

۲- د حرمان حجب.

د نقصان حجب: دې ته وايې چې يو څوك د بل چا د موجوديت له كبله په جز يي توگه له ميراث څخه محروم شي.

دحرمان حجب: دې ته وايې چې يو انسان د بل انسان د موجوديت له كبله په بشپړه توگه له ميراث څخه محروم شي.

د حرمان د حجب په نسبت ورثه دوې ډلې دي. يوه ډله يې هېڅ حجب حرمان نه قبلوي او دا ډله دغه شپږ كسان دي لكه:

۱- زوی

۲- پلار

۳- مېره

۴- لور

۵- مور

۶- ښځه

له دې پرته نور وارثان په يوه حالت كې مستحق او په بل حالت كې محروم گڼل كيږي.

**فعاليت**

داسې درې ډلې وارثان ذكر كړئ چې ځينې وخت په كلي توگه له ميراث څخه محروميږي




۱ د عصباتو ترمنځ د ميراث د استحقاق قانون روښانه كړئ.

۲- حجب تعريف او په څو ډوله دی ؟

۳- د حرمان حجب كوم حجب ته وايې ؟

٤- هغه كومه ډله خلك دي چې هېڅ وخت له ميراث څخه نه محروميږي؟

## د برخو (سهمونو) مخرجونه

د برخو د خاوندانو په بحث کې یادونه و شوه چې ټولې ذکر شوې برخې د خدای ﷻ په کتاب کې شپږ دي چې بیا په دوو ډولونو ویشل شوي دي. لومړی ډول یې نصف، ربع او ثمن دی. او دویم ډول یې ثلثان، ثلث او سدس دی.

څرنګه چې ذکر شوې برخې ټولې یو کسري عدد جوړوي، که هره یوه ځانته موجوده شي، نو د برخو مخرجونه د هغه کسر مخرج دی. د نصف مخرج دوه، د ربع مخرج څلور، د ثمن مخرج اته، د ثلثان او ثلث مخرج درې او د سدس مخرج شپږ دی.

که په مسأله کې د یوې نوعې له برخو څخه دوې یا درې برخې موجودې شي، نو هر عدد چې د جزء لپاره مخرج وي هغه عدد د هغه جزء د ضعف (دوه برابره) او د کمزورې لپاره هم مخرج وي.

د مثال په ډول: په لومړي ډول کې چې نصف، ربع او ثمن دی. ثمن د ربعې جزء دی. کوم عدد چې د ثمن لپاره مخرج وي یعنې (۸) نو د اته عدد د ثمن د ضعف $(\frac{۱}{۴})$ او د ضعف ضعف $(\frac{۱}{۲})$ لپاره هم مخرج دی.

همدارنګه په دویم ډول کې د سدس مخرج (۶) دی، نو همدا عدد د ثلث او ثلثان لپاره هم مخرج دی. که د لومړۍ نوعې نصف د دویمې ټولې نوعې او یا یوې برخې سره په مسأله کې راشي، نو مخرج یې شپږ دی (مسأله له شپږو) نه کېږي.

لکه: ښځه مړه شوه مېړه، مور او مورنی ورور ورڅخه پاتې شول.

| | ۶ | |
|---|---|---|
| مېړه | مور | مورنی ورور |
| نیمايي | دریمه | شپږمه |
| (۳) | (۲) | (۱) |

د زوج لپاره نصف، د ام لپاره ثلث او د اخ لأم لپاره سدس دی چې اصل (مسأله له شپږو) نه کېږي.

که د لومړۍ نوعې څخه ربعه د ټولې دويمې او يا يې له ځينو برخو سره راشي د مسألې مخرج (۱۲) کېږي، لکه: په دې مسأله کې: سړی مړ شو ښځه، پلارنۍ او سکنۍ خويندې ورڅخه پاتې شوې.

۱۲

مړی

| ښځه | پلارنۍ خويندې | سکنۍ خويندې |
| --- | --- | --- |
| ربع | سدس | ثلثين |
| (۳) | (۲) | (۸) |

که د اولې نوعې ثمن له ټولې دويمې نوعې او يا يې له ځينو برخو سره په مسأله کې راشي د مسألې مخرج له (۲۴) څخه کېږي، لکه: په دې مسأله کې: شخص مړ شو ښځه، مور، دوه لوڼې او تره ورڅخه پاتې شول.

۲۴

مړی

| ښځه | مور | دوه لوڼې | تره |
| --- | --- | --- | --- |
| ثمن | سدس | ثلثان | عصبه |
| (۳) | (۴) | (۱۶) | (۱) |

له ذکر شوي بيان څخه څرګندېږي چې د ميراث د مسألې مخرج به له لاندې مخرجونو څخه بهرنه وي.

(۲-۳-۶-٤-۸-۱۲-۲٤) نو د ميراث د مسألو لپاره مخرجونه (۷) اووه ټاکل شوي او سهمونه شپږ دي.




۱- د ذوی الفروضو ټولې ټاکل شوې برخې څو دي؟

۲- نصف له لومړۍ نوعې څخه چې له ټولې دويمې نوعې يا ځينو برخو سره ګډ شي مسأله د څو نه کېږي؟

۳- ربع چې په مسأله کې له ثلث او سدس سره يو ځای شي مسأله د څو نه کېږي؟

٤- ثمن چې له دويمې نوعې سره يو ځای شي د مثال په راوړلو سره مسأله توضيح کړئ.

۵- د ميراث د مسألو لپاره ټول مخرجونه څو دي؟

# عول

عول په لغت کې میلان او ظلم ته وايي چې د غلبې په معنا هم استعمالېږي. د میراث په اصطلاح کې عول دې ته وايي چې د سهمونو اندازه د مخرج په پرتله زیاته شي یعنې کله چې د مسألې مخرج معلوم او د وارثانو سهمونه ټول سره جمع شي د سهمونو مجموعه د مسألې له مخرج څخه تېرې وکړي، نو دې حالت ته په میراث کې عول وايي.

د لومړي ځل لپاره حضرت عمرﷺ پر عول باندې حکم کړی دی، ځکه د ده په زمانه کې داسې مسأله پېښه شوې وه، لکه: ښځه مړه شوه مېړه، مور او پلارنۍ خور ورڅخه پاتې شول.

اصل مسأله ۶ عول یې ۸ اته

| مړی | | |
|---|---|---|
| مېړه | مور | پلارنۍ خور |
| نصف | ثلث | نصف |
| ۳ | ۲ | ۳ |

په پورته مسأله کې نصف له لومړۍ نوعې څخه د دویمې نوعې له ثلث سره ګډ شوی، نو ځکه مسأله له شپږوڅخه پیلېږي. د شپږو نصف چې (۳) دی د زوج لپاره دی او ثلث یې دوه دی چې د مور لپاره دی، نصف یې (۳) دی چې د اخت لاب لپاره دی او د ټولو مجموعه ۳+۲+۳=۸ کېږي یعنې د سهمونو مجموعه اته او د مسألې مخرج شپږ دی نوځکه مسأله عول کوي له شپږو نه اتو ته چې د مړي متروکه به اته برخې شي او په پورته ډول به سهام هر وارث ته ورکړی شي.

حضرت عمرﷺ له نورو صحابه وو کرامو سره چې حضرت عثمانﷺ، حضرت عليﷺ حضرت ابن عباسﷺ او حضرت ابن مسعودﷺ له هغې جملې څخه وو مشوره وکړه. حضرت ابن عباسﷺ عول ته اشاره وکړه او نور و ټولو یې تائید وکړ او هیچا مخالفت و نه کړ. هماغه و چې د مړي متروکه په اتو برخو په پورتني ترتیب و ویشل شوه. نو ځکه یې مشروعیت ثابت دی او د هغه مطابق په عولیه مسألو کې اجراء کېږي.

**فعالیت**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو په مرسته دا لاندې مسألې وڅېړي چې عول کوي او که نه او هم دې مخرج ورته وټاکي.

۱ – سړی مړ شو یوه ښځه، څلور لوڼې، پلار او مور ورڅخه پاتې شول.

۲ – ښځه مړه شوه مېړه، دوه لوڼې، پلار او مور ترې پاتې شول.

۳ – ښځه مړه شوه یوه خور، مېړه، پلار او مور ترې پاتې شول.

٤ – سړی مړ شو، دوه ښځې، دوه لوڼې، مور او پلار ترې پاتې شول.




۱ - عول تعریف کړئ.

۲ – د لومړي ځل لپاره عول د چا په زمانه کې رامنځ ته شو؟

۳ – داسې یوه مسأله جوړه کړئ چې له دولسو څخه یې دیارلسو ته عول کړی وي.

# د عددونو ترمنځ تماثل، تداخل، توافق او تباین پېژندل

په ځینو مسایلو کې داسې پېښیږي چې په یوې یا څو ډلو باندې برخې پوره نـه تقسیمیږي بلکې کسري وي. د دې لپاره چې هر چا ته پوره پـوره برخـې ورسیږي او کسر پیـدا نـه شي، نو تصحیح ته اړتیا محسوسیږي او تـصحیح د عـددونو پـر تماثـل، تـداخل، توافـق او تباین باندې بناء کیږي، نوځکه له تصحیح څخه لومړی د دوی پیژندل ضرور دي.

تماثل: د هغو دوو یا زیاتو عددونو ترمنځ نسبت تـه ویـل کېږي چـې هغـه عددونـه سـره مساوي وي، لکه: پنځه پنځه یا درې درې او داسې نور.

تداخل: د اعدادو ترمنځ داسې نسبت ته وایې چې یو په بل کې دننه وي، لکـه: ۲ او ۴، ۳ او ٦ او داسې نور، داسې هم ویلای شو: هغه عددونه چې وړوکی یې په لوی پوره تقسیم شي، لکه: ۷ او ۲۱ او نور تداخل بلل کیږي.

توافق: د عددونو ترمنځ داسې نسبت ته وایې چې که یو عدد بل عدد ته متوجه کړی شـي هغه نه محوه کوي، لیکن دریم عدد هغه دواړه محوه کوي، لکه: ۸ او ۲۰. اته چې شلو ته متوجه شي په دوه کرته ۱۶ جدا کیږي او څلور باقي پاتې کیږي، خو څلور چې شـلو تـه متوجه کړو په پنځه کرته او چې اتو ته یې متوجه کړو په دوه کرته یې تماموي، نو اتـه او شل په څلورو(بالربع) توافق لري، ځکه هغه عدد چې دا دواړه محوه کوي (۴) دی.

تباین: د دوو عددونو ترمنځ هغه نسبت ته وایې چې یو بل نه محوه کوي او دریم عدد یې هم نه شي محوه کولای، لکه: ۹ او ۲۰ چې د دوی ترمنځ تباین موجود دی.

**فعالیت**

د لاندې عددونو تر منځ نسبت ذکر کړئ.

[ ۲۰، ۵ / ۹، ۱۱ / ۲٦، ۸ / ۷، ۷ ]

**د عددونو تر منځ د توافق او تباين د پېژندلو طريقه:**

له لوی عدد څخه وړوکی تفريق کيږي، تر څو مفروق منه له مفروق عدد څخه پاتې شي، له هغه وروسته کم عدد له ډېر عدد څخه تفريق کيږي، همدا عمليه په همدې بڼه دوام پيدا کوي، تر څو دواړه عدده سره يو شي.

که د دوی اتفاق په يوه و، د دوی تر منځ تباين دی، که په دوو متفق شول، نو په نصف توافق دی، که په دريو متفق شول، نو توافق يې په ثلث دی او که په څلورو متفق شول، توافق يې په ربع دی، همداسې تر پايه پورې دوام پيدا کوي.




۱. تماثل تعريف او مثال يې بيان کړئ.

۲. د تداخل تعريف او له مثاله سره يې وليکئ.

۳. توافق سره له مثاله واضح کړئ.

٤. د تباين تعريف او د يوه مثال په ترڅ کې يې وليکئ.

۵. د اعدادو تر منځ د توافق او تباين د پېژندلو طريقه و واياست.

# تصحيح

تصحيح له صحت څخه اخيستل شوې چې صحت روغتيا ته وايې. ناروغۍ ضد ده او د ميراث د علم په اصطلاح کې تصحيح عبارت ده له کوچني عدد نه د برخو اخيستل په داسې ډول سره چې د مستحقينو په برخو کې کسر واقع نه شي.

د مسايلو تصحيح په اصل کې د رياضي د علم برخه ده او د ميراث په علم کې د اړتيا له کبله په تفصيل سره راغلې چې هغه په دې لنډ بحث کې نه ځايېږي، خو د بېلګې په ډول يې دوه مثاله راوړو:

لومړی مثال: که د هرې ډلې برخې د هغې ډلې پر وارثانو باندې پوره ووېشل شي او هېڅ کسر پکې رانه شي، نو اصل مسأله په خپله تصحيح ده او کوم ضرب ته اړتيا نه لري، لکه: چې شخص وفات شي، پلار، مور او دوه لوڼه ورڅخه پاته شي، د مور يې شپږمه، د لوڼو يې دوه ثلثه او باقي يې په عصوبت د پلار کېږي.

مسأله ۶

مړی

| پلار | مور | دوه لوڼې |
|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۴ |

دويم مثال: کله چې د برخو په وېش کې په يوې برخې باندې کسر واقع شي او دسهامو او د رؤوسو تر منځ يې توافق موجود وي، نو د رؤوسو وفق د مسألې په اصل کې ضربوو، دضرب حاصل د مسألې تصحيح جوړېږي، او د هرچا برخه چې په مضروب کې ضرب شي حاصل يې د تصحيح څخه د هغوی برخه ده، لکه: شخص مړ شو پلار، مور او لس لوڼې ورڅخه پاتې شوې.

اصل مسأله۶ ضرب۵= ۳۰ تصحيح۳۰ده

مړی

| پلار | مور | لس لوڼې |
|---|---|---|
| ۱ضرب۵=۵ | ۱ضرب۵=۵ | ۴ضرب۵=۲۰ |

خلور په لسو پوره نه تقسيمېږي او نسبت د خلورو او لسو ترمنځ موافقت بالنصف دی، نو د لسو نيمايې چې پنځه دي بايد په اصل مسأله کې چې شپږ دي ضربوو، د ضرب حاصل يې (۳۰) کېږي چې همدغه د مسألې تصحيح ده.

**فعاليت**

لاندې مسايل دې په داسې ډول حل شي چې د هېڅ وراث برخه کسر ونلري:

۱ – سړی مړ شو دوه ښځې، شپږ لوڼې، درې زامن، پلار او يا مور ترې پاتې شول.

۲ – ښځه مړه شوه، مېړه، درې خويندې او يو لمسی يې وارثان دي.

۳ – ښځه مړه شوه دوه مورنۍ وروڼه، پلار، مور او خاوند يې وارثان دي.




۱- د تصحيح لغوي او اصطلاحي معنا بيان کړئ.

۲-که د هرې طايفې برخې په وارثانو پوره ووېشل شي د تصحيح صورت څرنګه دی؟ واضح يې کړئ؟

۳- که د يوې ډلې وارثانو د برخو وېشل کسري شي، د برخو او وارثانو د شمېر تر منځ موافقت وي، د مسألې تصحيح به په څه ډول وشي ؟ د يوه مثال په ترڅ کې يې واضح کړئ.

٤- يوه داسې مسأله له خپل فکر څخه حل کړئ چې په هېڅ طايفه کسر نه وي راغلی.

# د وارثانو تر منځ د متروکې د تقسیم طریقه

کله چې د مړي متروکه د مړي په وارثانو باندې وېشو، لومړی باید متروکه په نقدو (افغانیو) واړول شي، له دې وروسته به د وارثانو لپاره د مسألې تصحیح وشي، بیا د مسألې د تصحیح او متروکې تر منځ په نسبت وکتل شي. که چېرې د متروکې او تصحیح ترمنځ نسبت تباین و، نو کومه برخه چې د هر وارث لپاره د تصحیح له مسألې نه رسیږي، هغه به په ټوله متروکه کې ضربوو او د ضرب حاصل به پر تصحیح د مسألې باندې تقسیموو.

د مثال په توګه: که یو تن مړ شي، پلار، مور او دوه لوڼې ترې وارثان پاتې شي اوترکه (۷)دیناره وي، نو د تقسیم عملیه په لاندې توګه تر سره کیږي.

مسأله۶

مړی ――――――――――――――――――――――――

| پلار | مور | دوې لوڼې |
|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۴ |

دلته اصلي مسأله (۶) او متروکه (۷) دیناره ده چې پر (۶) پوره نه وېشل کیږي او نسبت د ۶ او ۷ ترمنځ تباین دی، نو د پلار لپاره له اصلي مسألې څخه یوه برخه ده. یو به په (۷) کې ضرب کړو او حاصل ضرب (۷) به د مسألې پر تصحیح (۶) ووېشو، حاصل تقسیم چې ($1\frac{1}{6}$) کیږي د پلار برخه شوه.

همدارنګه د مور حق ($1\frac{1}{6}$)دیناره کیږي.

د لور برخه د مسألې څخه دوه ده، کله چې په متروکه کې ضرب شي ۱۴کېږي، که په شپږو ووېشل شي دوه صحیح یو پر درې دیناره هرې یوې لور ته رسیږي.

**فورمول**

$$\frac{\text{ترکه} \times \text{سهم هر وارث}}{\text{تصحیح مساله}}$$

او که د مسألې د تصحيح او متروکې ترمنځ نسبت توافق وي، نو بايد د هر وارث برخه د متروکې په وفق کې ضرب او د تصحيح پر وفق باندې وو‌یشل شي، حا صل تقسيم د هر وارث برخه جوړوي.

فورمول: وفق ترکه × سهم هر وارث
وفق تصحيح

مثلا: که په پخوانۍ مسأله کې متروکه (۸) ديناره وه.

مسأله ۶

مړی

| پلار | مور | دوه لوڼې |
|---|---|---|
| شپږمه | شپږمه | ثلثان |
| ۱ | ۱ | ۴ |

دلته گورو چې د (۶) او (۸) ترمنځ موافقت بالنصف دی، نو د هر وارث برخه بايد د متروکې په نيمايي کې ضرب شي او بيا د ضرب حاصل د تصحيح په نيمايي وو‌یشل شي. د پلار لپاره له اصل مسئلې نه يو او نيمايي د متروکې (۴) دي. ۱×۴=۴ کيږي، کله چې د مسئلې پر نيمايي (۳) وو‌یشل شي ۱،۳۳ کيږي. همدارنگه د مور برخه ۱،۳۳ ديناره ده. د يوې لور برخه چې له مسئلې نه دوې برخې ده، هم د متروکې په نيمايي (۴) کې ضربيږي ۲×۴=۸ کيږي چې کله د تصحيح پر نيمايي (۳) باندې وو‌یشل شي خارج قسمت ۲،۶۶ کيږي چې د هرې لور برخه جوړوي.

**فعاليت**

يو لک او شل زره افغانۍ پر لاندې وارثانو وو‌یشئ.

پر مېړه ، درې زامنو، څلورو لوڼو، پلار او مور.

# تخارج

تخارج له خروج څخه اخیستل شوی دی او د میراث د علـم پـه اصـطلاح کـې تخـارج د وارثانو ترمنځ هغه سوله ده چې کوم وارث د وارثانو لـه ډلـې څخـه د یـو ټـاکلي شـي پـه اخیستلو سره ځان له منځه وباسي او خپله برخه نورو وارثانوته پرېږدي، دا کـار روا دی پـه دې شرط چې ټول وارثان ورباندې راضي شي، نو که کوم وارث په یوه شي لـه متروکـې څخه له نورو وارثانو سره سوله وکړي د هغـه وارث برخـه بـه د تـصحیح د مـسألې څخـه طرح او پاتې متروکه به په پاتې برخو ووېشل شي، لکه چې مېړه د متروکې له مـا ل څخـه په یوه شي سوله وکړي، لکه: په دې مسأله کې: ښځه مړه شوه مېړه، مور او تره ترې پـاتې شول.

د مسألې اصل له مېړه سره ۶

مړی

| مېړه | مور | تره |
| --- | --- | --- |
| نصف | ثلث | عصبه |
| ۳ | ۲ | ۱ |

کله چې زوج په یوه شي سره سوله وکړي، نو له متروکې څخه هغه شی غورځول کېږي او پاتې متروکه په پاتې برخو چې د مور برخه (۲) او د تره برخه (یوه) ټـولې درې برخـې وي وېشل کېږي، دوه برخې د مور او یوه برخه د تره کېږي او یا په دې مسأله کې:

مسأله ۸ ضرب ۴= ۳۲

مړی

| ښځه | ۴زامن |
| --- | --- |
| ثمن (اتمه) | عصبه |
| ۱ ضرب ۴=۴ | ۷ ضرب ۴= ۲۸ |

که یو زوی پر یوه شي سوله وکړي او له منځه ووځي، نو د یوه زوی برخه (۷) ده او کله چې (۷) له (۳۲) څخه کم شي (۲۵) پاتې کیږي، نوځلور برخې(۲۱) برخې درې زامنو تـه چې د هر یوه زوی لپاره (۷) رسیږي ورکول کیږي.




۱. متروکه پر وارثانو باندې څرنگه وېشل کیږي؟ طریقه یې واضح کړئ.
۲. که یو سړی مړ شي او متروکه (۲٤) افغانۍ وي د هر وارث برخه څو کیږي؟
۳. تخارج تعریف کړئ.
٤. که یوه ښځه مړه شي او له دې څخه مېړه، موراو تره پاتې شـي او مېړه سـره پـه یـوه شي جوړه راشي او له خپلې برخې څخه تېر شي، نوره متروکه څنگه ویشل کیږي؟

# رد

رد په لغت کې رجوع او بېرته ګرځولو ته وايي او په اصطلاح کې د عـصبه و، د نـشتوالي په صورت کې ذوي الفروضو ته د متروکې پاتې برخه د هغوی د برخو په اندازه، ورکـول دي.

د عول په عکس په رد سره د ذوی الفروضو برخې زیاتیږي او اصلي مسأله کمیږي، خـو په عول کې اصلي مسأله زیاتیږي او د ذوی الفروضو برخې کمیږي.

رد زوج او زوجې ته نه ورګرځي

لومړی مثال: یو څوک مړ شو او دوې لوڼې ورڅخه پاتې شوې.

اصل مسأله له ۳ څخه ده خو ۲ ته ردیږي

مړی ———————

دوه لوڼه

یعنې ټول مال به په دوو لوڼو وېشل کیږي.

دویم مثال: ښځه مړه شوه مېړه او درې لوڼه ورڅخه پاتې شوې.

مسأله د۱۲څخه ده، خو رد به یې ٤ ته کیږي

مړی ———————————————

| مېړه | ۳درې لوڼې |
|---|---|
| ربع | ثلثان |
| ۳ | ۸ |

۳+۸=۱۱ یوه برخه زیاتیږي، هغه بېرته یوازې لوڼو تـه ور کـول کېږي چې د لوڼو برخـه (۹)کیږي چې هرې لور(۳) برخې رسیږي، کله چې د اختصار عملیه تر سره شي، نو مسأله (۴) رد کیږي.

## حمل

د مړي د نورو وارثانو په اړه د متروکې ټـول مـسایل پخـوا ذکـر شـول، خـو کـه چېـرې د وارثانو په ډله کې د مور په ګېډه کې حمل هم شامل وي، نو د مړي متروکه به په وارثانو تقسیم او د حمل برخه به موقوفه پاتې شي.

د حمل لپاره د برخې په موقوف پرېښودو کې علماء ډېر اختلاف لري، خو په دې خبره فتوی ده چې په یوه زوی یا یوه لورکې چې د هر یوه برخه ډېره وي، هغه به موقوفه پاتې کېږي او کله چې ماشوم پیدا شي، که د ټول موقوفه مال مستحق وي هغه به ورکړي او که د ټول موقوفه مال مستحق نه وي خپله ټاکلې، حصه به ورکړل شي او چې د هر وارث د برخې څخه زیاته اندازه موقوفه پرېښودل شوې وي هغه به وارث ته ورکول کېږي.




۱- لاندې مسایل حل کړئ:

- له مړي څخه درې خويندې او مور پاتې دي.
- د سړي د مرگ څخه وروسته څلور لوڼې او ښځه پاتې دي.
- له مړي څخه یوه لور، مور او ښځه پاتې دي.

۲- د رد معنا څرگنده کړئ.

۳- رد کومو ذوی الفروضو ته نه ورکول کېږي؟

۴- که چېرې د مړي په وارثانو کې د مور په گېډه ماشوم وي څه به ورسره کېږي ؟

۵- حمل ته به څومره برخه پرېښودل کېږي؟

۶- کله چې ماشوم وزېږېده د ده له برخې سره به څه پرېکړه کېږي؟

# جهاد

د اسلام ټول قوانين ددې لپاره دي چې انسان په مادي او معنوي اړخونو کې پرمختګ وکړي او کمال ته ورسيږي، نو که د وګړو او ټولنې ايمان، استقلال، ابرو او عزت د تېرې او ګواښ لاندې راځي، په وړاندې يې ستونزې او موانع رامنځ ته کيږي، د اسلام مبارک دين ددې موانعو د لرې کولو لپاره د ځانګړو احکامو په پام کې نيولو سره جهاد لازم کړی چې دمضمون په دې برخه کې به د جهاد تعريف او احکام ولولو، او له حکمتونو سره به يې اشنا شو.

## د جهاد تعريف

جهاد په لغت کې د جَهد له کلمې څخه اخيستل شوی چې د خپل قدرت او توان څخه نهايي کار اخيستلو ته وايي.

**په اصطلاح کې:** د خدای ﷻ په لار کې په ځان، مال، ژبه او داسې نورو باندې مبارزه او کوښښ جهاد بلل کيږي.[1]

## د جهاد حکم

جهاد فرض کفايي دی، نو هرکله چې د اړتيا په وخت کې د خلکو يوه ډله جهاد کوي، له نورو څخه فرضيت ساقطيږي، خو که چېرې دښمن تېری وکړ او له اسلامي تاټوبي او مسلمانانو څخه د دفاع او کافرو ته د ماتې ورکولو په خاطر ټولو مسلمانانو ته اړتيا وه، بيا جهاد فرض عين ګرځي.

## د جهاد د رواوالي دليل

۱- قرآنکريم: الله ﷻ فرمايي: ﴿قَاتِلُواْ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَلاَ بِالْيَوْمِ الآخِرِ﴾ [التوبة: ۲۹]

**ژباړه:** جګړه وکړئ له هغو کسانو سره چې په الله تعالی او د اخرت په ورځ ايمان نه لري.

۲- سنت: رسول الله ﷺ فرمايي: «الجهاد ماض إلى يوم القيامة» جهاد د قيامت تر ورځې پورې دوام لري.

۳- اجماع: ټول امت له پخوا څخه تر دې دمه د جهاد په فرضيت باندې د شرايطو د پوره کيدو په صورت کې اتفاق کړی.

---

[1] - بدائع الصنائع

### د جهاد تاريخي پس منظر:

رسول الله (ﷺ) په مکي دوران کې په هېڅ ډول پر عملي مقابلې لاس پورې نکړ، بلکې ديارلس کاله يې په صبر او زغم دين ته خلك راوبلل، په ژبنی بلنې او تمثيل سره يې اسلام د خلکو په زړونو کې ورځای کړ، په دې دور کې رسول الله (ﷺ) بدي په نېکی او کنځلې په خندا ځوابولې، د کفارو د ضرر رسونې او ځورونې مقاومت يې په سوله ييزه توګه کاوه. دده د مبارکو سترګو لاندې به مسلمانان ځورېدل اووژل کېدل، خو رسول الله(ﷺ) به دوی ته داسې لارښوونه کوله: "له جنګ څخه لاس واخلئ او لمونځ ته مخه کړئ". په دې هم د کفارو زړه نه سړېده، بغض او کينه کې يې لږوالی نه راته، بالآخره مسلمانان مجبور شول چې خپل کور او ځای پرېږدي او هجرت وکړي، حتی داسې ورځ هم راغله چې مشرکانو د مسلمانانو مال، ملکيت، ځمکې او فصلونه يې په خپلو منځونو کې ووېشل، خو بيا هم رسول الله (ﷺ) د کوم شکايت غږ پورته نکړ، د مشرکانو هر ډول سپکاوی يې وزغمه، ترڅو چې الله تعالی د خپلې تشريع مطابق- چې په نړۍ کې به د ظالم لاس نيوی په زور سره کيږي- خپل پيغمبر ته د جهاد کولو فرمان صادر کړ.

### د جګړې اجازه

وروسته له دې چې مسلمانان په مدينه منوره کې ځای پرځای شول، په دويم هجري کال کې ورته د دفاع اجازه ورکړل شوه، لومړنی آيت چې په دې هکله نازل شوی په ډېره خوږه لهجه د جهاد د روا والي علت او حکمتونه بيانوي، فرمايي:

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ ۞ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۞ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيراً وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ۞ الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ [الحج: ۳۸ - ۴۱]

**ژباړه:** (بېشکه الله (ﷻ) له مؤمنانو څخه دفاع کوي. پاك پروردګار هېڅ خيانت کار کافر نه خوښوي، هغوی ته د جنګ کولو اجازه ورکړل شوه چې نور ورته د جنګ لپاره راغلل، ترڅو و جنګيږي، خدای (ﷻ) د دوی په مرسته قادر او بس دی، دوی د خپل ښار او هېواد څخه په ناحقه په داسې حال کې ايستل شوي چې هېڅ جرم يې پرته له دې

چې ویل یې زموږ پروردګار الله (ﷻ) دی نه درلود. که چېرې خدای(ﷻ) یو پر بل دفع نکړي، ضرور به د راهبانو عبادتخونې، د عیسویانو کلیساوې، د یهودو معبدونه او هغه جوماتونه چې د خدای (ﷻ) نوم پکې ډېر یادیږي وران شي، بېشکه الله (ﷻ) د هغه چا سره چې دده (د دین) ملګری دی، ملګرتیا کوي، بېشکه خدای (ﷻ) د ډېر قدرت خاوند او غالب دی. هغه کسان چې په ځمکه کې مو ورته قدرت (واک) ورکړ، لمونځونه دروي، زکاتونه ورکوي، نېکۍ ته بلنه کوي، د بدۍ نه منع کوي او د ټولو چارو پای الله (ﷻ) لره دی.

**فعالیت**

ځینې وایې: که چېرې د اسلام دین د رحمت دین وي، ولې د جنګ دستور ورکوي؟ جنګ خو بد شی دی، د هغه څه په رڼا کې چې تاسې ولوستل ځواب ورکړئ.




۱- جهاد لغتاً او اصطلاحاً څه معنا لري؟

۲- د جهاد حکم بیان کړئ.

۳- د جهاد د روا کېدلو دلیل ووایاست.

۴- د جهاد د تاریخي پس منظر په هکله لنډ معلومات ورکړئ.



**کورنۍ دنده**

د جهاد د رواوالي د حکمت په هکله څو کرښې مقاله ولیکئ.

# د جهاد لاسته راوړني

د جهاد تعريف، حکمت او پس منظر مو چې د اسلام ستر لارښود حضرت محمد (ﷺ) ورباندې مامور شوی ولوستل، اوس ښايي چې د جهاد موخې او د اسلام په پيل کې د جنګ د څرنګوالي په هکله هم څه ناخه معلومات ترلاسه کړو.

**د مسلمانانو د جهاد پايلې:**

**الله تعالی د تيرو دوو ايتونو په دوام کې فرمايي:** ﴿الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ [الحج: ٤١] **ژباړه:** دا هغه کسان دي چې موږ دوی ته په ځمکه کې قدرت ورکړ، نو لمونځ به دروي، زکات به ورکوي، په ښو چارو به امر کوي، له بديو به منع کوي او د ټولو چارو پای د الله په لاس کې دی.

پورتنی ايت موږ ته راښيي چې مسلمانان قدرت ته ورسيږي، نو لاندې کارونه به تر سره کوي.

الف: د الله ﷻ عبادت به کوي. ځکه لمونځ د دين ستنه ده او له الله ﷻ سره د وصل صحيح رمز دی.

ب: يو له بل سره به مرسته کوي، ځکه زکات د اسلام پل دی او انسانان يو له بل سره يو ځای کوي.

ج: امر بالمعروف نهي عن المنکر کوي. يعني ځان به دې باندې متعهد کوي چې نيکي به خپروي او له بديو سره به مبارزه کوي.

**د پيغمبر اکرم (ﷺ)جهاد**

په اسلام کې جنګ د مقدساتو د دفاع، د ظلم د ريښو وچولو او پرې کولو په خاطر کيږي، د جنګ ميدان، د وژلو ميدان دی، خو بيا هم د اسلام د ځانګړو لارښوونو په رڼا کې چې په دې هکله يې کړې، کېدای شي د مړينو مخنيوی وشي. په صدر اسلام کې جنګونه په داسې معقوله توګه منظم شوي وو چې ډېره کمه وينه پکې توی شوې او لږ ځاني تلفات يې لرل، نو د دواړو خواوو (کافرو او مسلمانانو) د مړو شمېر په ټولو غزواتو کې چې د دويم هجري کال څخه پيل او تر نهم کال پورې وغځېدې د ١٠١٨ تنو څخه

ډېر نشو چې ۲۵۹ تنه مسلمانان او ۷۵۹ تنه کافر وژل شوي. په داسې حال کې چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې ۷ میلیونه وګړي وژل شوي او ۲۱ میلیونه ټپیان شوي.
په دویمه نړیواله جګړه کې چې کله د دواړو لورو وحشیان یو تر بله غېږ په غېږ شول د ۴۰ میلیونو څخه زیات انسانان ووژل شول، همدارنګه په روسیه کې د باطل کمونیستي نظام واګو ته د رسېدو لپاره تر پنځوسو میلیونو پورې انسانان ووژل شول.

**فعالیت**
د صدر اسلام جنګونه د شلمې پېړۍ له جنګونو سره پرتله او د دواړو جنګونو اسباب له یوبل سره بیان کړئ.

### د جهاد ځیني موخې او حکمتونه

#### الف – دفاع

له پورتني آیت څخه ښکارېږي چې اسلام خپلو پیروانو ته ددې اجازه ورکړې چې د هغه مخالف قدرت مخه ونیسي او له ځان څخه دفاع وکړي کوم چې د دوی شتون ګواښوي او له منځه یې وړي، ترڅو یو مسلمان وکولای شي چې هوسا ژوند وکړي، د اسلام مبارک دین د حکمت په څنګ کې د مسلمانانو د قدرت او واک په شتون هم تینګار کوي چې د دعوت او بلنې ملګرتیا وکړي. الله (ﷻ) فرمايي:
﴿وَ قَاتِلُوهُمْ حَتّى لاَ تَكُونُ فِتْنَة وَ يَكُون الدّين كله الله﴾ [التوبة: ۳۹]
**ژباړه:** او هغو سره تر هغې وجنګېږئ چې هېڅ فتنه پاتې نشي او سوچه دین د خدای شي.

#### ب – د مستضعفینو ازادي

په اسلام کې د جهاد یوه موخه د مظلومانو او کمزورو خلکو سره مرسته د دوی له حقوقو څخه دفاع او د عدالت قایمېدل دي، څنګه چې په قرآن کریم کې فرمايي:
﴿وَمَا لَكُمْ لاَ تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاء﴾ [النساء: ۷۵]
**ژباړه:** ولې د خدای (ﷻ) په لار کې د هغو بې وزلو سړو، ښځو او ماشومانو لپاره چې د ظلم او تېري لاندې دي نه جنګېږئ؟
همدارنګه ربعي بن عامر، رستم ته چې د فارسي قواوو سرلښکر ؤ داسې وايي: «الله ابتعثنا والله جاء بنا لنخرج من شاء من عبادة العباد الى عبادة رب العباد, ومن ضيق الدنيا إلى سعة الآخرة,

ومن جور الأديان على عدل الاسلام» **ژباړه:** الله (ﷻ) موږ را لیږلي یو څو هغه خلك چې الله غوښتي وي، د بنده ګانو له بندګۍ څخه د یوه خدای (ﷻ) عبادت ته، د دنیا د تنګیو څخه یې د هغې فراخۍ او د ادیانو له ظلم څخه اسلامي عدالت ته راوکاږو.

### ج- د دعوت آزادي

د اسلام د سپېڅلي دین رسالت یو نړیوال رسالت دی، مسلمانان دا دنده لري چې د حق دا غږ د ټولو نړیوالو غوږونو ته ورسوي او په لاربښوونو یې ویوهوي، لکه: څنګه چې الله (ﷻ) فرمایي:

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾

[آل‌عمران:۱۱۰]

**ژباړه:** تاسو (اې د رسول الله ﷺ امته) غوره امت یاست چې د انسانانو لپاره را لیږل شوي یاست (ترڅو) په نېکۍ امر وکړئ، له بدۍ نه منع وکړئ او په الله (ﷻ) باور لرئ.

بناء مسلمانان ددې لپاره لیږل شوي چې بشر ته لاربښوونه وکړي.

پس هرکله چې زموږ د حق او حقیقي بلنې په وړاندې خنډونه رامنځ ته کېږي اسلام ددې موخې د ساتنې او د دعوت د آزادۍ د تامین لپاره مونږ ته د جهاد اجازه راکړې.

دې ټکي ته باید ځیر شو چې د حق او ریښتیني دعوت د تحمیلولو په خاطر جنګ او جګړه نشته، بلکې هرکله چې د حق دعوت د خپرولو په لار کې خنډ پیداشو او دا آزادي یې له منځه وړله، بیا د جګړې اعلان کېږي، تر څو هغه موانع چې بندګانو ته د الله تعالی د پیغام رسولو په لار کې موجودې دي له منځه یوسي.




۱- په صدر اسلام کې د جنګونو تلفات څومره و؟

۲- د کمونیستي نظام قدرت ته د رسېدو لپاره څومره کسان وژل شوي او ددې نظام پای څه شو؟

۳- د جهاد ځینې حکمتونه بیان کړئ.



**کورنۍ دنده**

د جهاد د موخو په هکله لس کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# څوک په جهاد مکلف دي؟

که چېرته جهاد فرض کفايي وي، هغه کسان چې د جنګ کولو توان ولري، کولای شي چې د مسلمانانو د امير په اجازه په جګړه کې ګډون وکړي، خو کله چې جهاد فرض عين وګرځي، نو هغه څوک چې د جهاد کولو توان ولري په هغه جهاد فرض ګرځي. مسلحانه جهاد په کوچنيانو او معيوبينو فرض نه دی.

**له جګړې څخه وړاندې بلنه**

سليمان بن بريده‌رضي الله عنه له خپل پلار څخه روايت کوي: "رسول الله‌ﷺ به چې کله څوک د سرلښکر په توګه ټاکه، د تقوی او پرهېزګارۍ توصيه به يې ورته کوله او بيا به يې ورته وفرمايل: هرکله چې له خپل مشرك دښمن سره مخامخ شوې، هغه ته د درېو څيزونو بلنه ورکوه.

١ -که چېرې يې د هو ځواب درکړ، لاس ترې واخله.

٢- او که يې انکار وکړ، جزيه ترې وغواړه، که يې قبوله کړه، ته يې هم قبوله کړه او لاس ورڅخه ونيسه.

٣- او که جزيه يې هم ونه منله بيا له پاك پروردګار څخه مرسته وغواړه او ورسره جګړه پيل کړه. . .

**فعاليت**

آيا په اسلام کې جګړه د عقيدې د تحميل په خاطر ترسره کېږي؟ د اسلام پېغمبر او د صحابه کرامو د سيرت په رڼا کې دا مسأله وڅېړئ **او د** ( لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ) له حکم سره يې پرتله کړئ.

**د جګړې په حالت کې د دښمن کوم کسان وژل کېږي؟ او کوم نه وژل کېږي:**

په جګړه کې د هغو کسانو وژل روا دي چې عملاً، فکراً او يا مشورتاً په جګړه کې دخيل وي، خو د هغو کسانو وژل جواز نه لري چې په جګړه کې ګډون نه لري، لکه: ښځه، ماشوم، سپين ږيري، ناروغان، فلج، معلول، ګوډ، ړوند، هغه راهب چې په کليسا کې عبادت کوي، هغه کسان چې کور يا معبد ته پناه يوسي، هغه کسان چې د جګړې وس نلري او هغه چې په خپلو پټيو کې په کرکيله بوخت وي، خو که چېرته عملاً په جګړې کې ګډون کوي يا په خبرو، فکر او مالي مرسته له کفارو سره همکار وي بيا يې وژل روادي. په دې اړوند انس‌رضي الله عنه له رسول الله‌ﷺ څخه دا ډول توصيه روايت کوي،

فرمايي: "د خداى په نامه، د الله ﷻ او د رسول الله ﷺ ددين لپاره ولاړ شئ، زاړه، ماشومان، ښځې او په عبادتخونو كې ناست كسان مه وژنئ"

له پورتني حديث څخه څرګندېږي چې د مسلمانانو د جګړې او مبارزې معيار د خداى ﷻ حكم او اسلامي ضوابط دي، نو كه دې اصولو ته پاملرنه وشي هېڅ ظلم او جنايت نه رامنځ ته كېږي، يو بې ګناه انسان، ښځه او ماشوم به نه وژل كېږي.

### څه ډول جګړه روا ده؟

﴿الَّذِينَ آمَنُواْ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ﴾ [النساء: ٧٦]

**ژباړه:** چاچې ايمان راوړى د خداى ﷻ لپاره جهاد كوي، څوك چې كافر شوي دي د طاغوت په لاره كې جنګېږي.

په اسلام كې جګړه يوازې د الله ﷻ په لار كې ده، د هوى هوس، واك ته د رسېدو، په نورو باندې واكداري او د خاورې لاندې كولو لپاره جګړه كول جهاد نه دى، په دې اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه، كه يو څوك د خپلې زړورتيا ښودلو لپاره جنګېږي، يا د ريا (ځان ښودنې) لپاره جنګېږي. كوم يو د خداى ﷻ لپاره دى؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ» **ژباړه:** څوك چې د خداى ﷻ د كلمې د پورته كولو لپاره جنګېږي، هغه د خداى ﷻ لپاره جنګ (جهاد) دى.

### د قوميت او نژاد لپاره جنګ كول جايز نه دي

په نننۍ نړۍ كې ډېر جګړې د رنګ او نژاد پرستۍ په خاطر پېښېږي. خپل قوم په نورو قومونو غوره ګڼي، عامه وژنه كوي، حا ل دا چې اسلام دا عمل محكوموي. رسول الله ﷺ فرمايي: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ» **ژباړه:** څوك چې خلك قومي تعصب ته رابلي هغه زموږ له ډلې څخه نه دى، څوك چې د قومي تعصب (نژاد پرستۍ) په خاطر جنګېږي هغه زموږ له ډلې څخه نه دى او څوك چې په دې تعصب كې مړ شو، زموږ څخه نه دى.




١- څوك په جهاد مكلف دي؟

٢- رسول الله ﷺ د جګړې څخه نه وړاندې اسلامي لښكر ته څه لارښوونه كړې وه؟

٣- د جګړې په حالت كې د كومو كسانو وژل روا دي؟

٤- كوم ډول جنګونه حرام دي؟ روښانه يې كړئ.



### كورنۍ دنده

زده كوونكي دې لوست يو ځل خپلو دوستانو او د كورنۍ غړو ته ولولي او لنډيز دې په خپلو كتابچو كې وليكي.

# د اسلام له نظره د جهاد ډولونه

جهاد د پیاوړي او څواکمن کوښښ په معنا د اسلام له نظره په څو ډولونو وېشل کېدای شي چې له هغې جملې څخه ځینې یې عبارت دي له.

**۱ـ مالي جهاد**

مالي جهاد، د جهاد د نورو ډولونو د ملا تیر جوړوي، ځکه هر ډول جهاد مالي امکاناتو ته اړتیا لري او که مسلمانان مالي جهاد ونه کړي، نور هر ډول جهاد ناشونی کېږي. له همدې کبله الله تعالی په قرآن کریم کې د ځان او مال قربانول، یو بل ته څېرمه ذکر کړي، د بېلګې په توګه په دې آیت کې فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾[التوبة: ۱۱۱] **ژباړه:** یقیناً الله تعالی له مؤمنانو څخه د هغوی ځانونه او مالونه د جنت په مقابل کې اخیستي دي.

**۲ـ د دعوت جهاد**

دا جهاد په ژبه سره خلکو ته په پخو دلایلو د دین رسولو او په عملي بڼه د دین په ریښتیني توګه تمثیلولو سره سر ته رسیږي، مسلمانان باید د کفارو، منافقینو، مشرکینو، ملحدینو او بې باکه او نا ملتزمو مسلمانانو په مقابل کې د اسلام حقانیت بیان کړي او لازمه ده چې داعي په خپلو کړو وړو هم د نورو لپاره بېلګه واوسي، څو د هغوی لپاره مقتدا جوړ شي نو په دې توګه به د حق دین خپور شي، او همدا لار د دین د خپرولو لپاره تر ټولو اغېزمنه لاره ده چې ټولو انبیاوو کارولې او په هر مسلمان باندې لازمه ده په هر ډول ټولنه کې چې اوسیږي د رسول اللهﷺ په طریقه خلک ښو کارونو ته راوبولي او له بدیو څخه یې منعه کړي.

الله تعالی فرمايلي: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾ [آل عمران:۱۱۰] **ژباړه:** تاسو تر ټولو غوره امت یاست د خلکو د ګټې لپاره وېستل شوي یاست، په نېکۍ امر کوئ او له بدۍ څخه منعه کوئ او په الله ایمان لرئ.

البته د دعوت په جهاد کې په داعي لازمه ده، څو له حکمت څخه کار واخلي، د دعوت په امورو کې ډېر مهم مخکې کړي، د خلکو په ځورونو او تکلیف صبر وکړي او له هغې ټولنې او محیط څخه چې دی دعوت پکې کوي با خبره واوسي.

### ۳ـ د علم او زده کړې جهاد

دا جهاد د مسلمانانو د علم په ګاڼه باندې په پوښلو سره تر سره کېږي، څو ټول زیار وباسي دیني او نور ګټور علوم چې هغو ته اړتیا لري زده کړي او په علمي فکري او کلتوري برخو کې د یو، کامل او هر اړخیز اسلامي تصور او ذهنیت خاوندان واوسي. په روایاتو کې له رسول اللهﷺ څخه را نقل شوي چې فرمایلي یې دي: د علم او پوهې په هکله یو بل ته لارښوونه کوئ، په علم کې خیانت د مال له خیانت څخه ډېر بد دی او هرو مرو به الله تعالی له تاسو څخه په دې هکله پوښتنه وکړي.

او الله تعالی فرمایلي: ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ [ التوبة: ۱۲۲].

**ژباړه:** د مؤمنانو لپاره مناسب نه دي چې ټول دې ووځي، ولې له هرې سترې ډلې څخه یو څو کسان (د علم په زده کړه پسې) ونه وتل څو په دین کې پوهه تر لاسه کړي او خپل قوم ووېروي کله چې بېرته ورو ګرځي، څو (له ناوړه کارونو) ځان وساتي.

**فعالیت**

د دعوت او ښوونې په جهاد کې ځینې ارزښتناک ټکي شته چې باید عملي شي، ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د پورتني موضوع پایلې دې ټکي په ټکي ولیکي او له دوی څخه دې وغواړي چې دغه موضوع په خپلو منځونو کې وڅېړي.

### ٤ـ سیاسي جهاد

له دې جهاد څخه موخه د اسلام د عدل په اصولو د دولت جوړولو لپاره کوښښ کول دي، داسې دولت چې هلته حاکمیت یوازې د الله تعالی وي، کله چې په اسلامی سیمو کې د دین احکام ترک شي او د مسلمانانو یو والی هېر کړای شي، نو په مسلمانانو لازمه

ده، څو کوښښ وکړي د اسلام د قوانينو تر سيوري لاندې د مسلمانانو د يووالي سره سره اسلامي حاکميت په پښو ودروي.

**۵ـ مسلحانه جهاد**

د توري په مټ د طاغوت او د هغه د پلويانو پر خلاف مبارزه کول دي، هغه طاغوتيان چې د الله تعالی د دين په وړاندې يې بيرغ اوچت کړی وي او د الله ﷻ بندګان په خپله بندګۍ نيسي، ظلم او فساد يې په مخ کې اچولی وي، کښتونه او نسلونه هلاکوي، د الله تعالی د دين له اقامې څخه مخنيوی کوي او د حق د بلنې په وړاندې خنډونه جوړوي.

الله تعالی په دې هکله فرمايي: ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ﴾ [البقرة: ١٩٣]

**ژباړه:** او له هغوی سره جګړه وکړئ تر هغه پورې چې فتنه پاتې نه شي او د ژوند نظام ټول د الله تعالی (د خوښې) شي.

او همدا رنګه فرمايي: ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ﴾ [التوبة: ٢٩] **ژباړه:** له هغو خلکو سره جګړه وکړئ چې په الله تعالی او د آخرت په ورځ ايمان نه لري او د الله تعالی او رسول حرام کړی شوي شيزونه حرام نه ګڼي او د حق په دين رفتار نه کوي له هغو خلکو څخه چې کتاب ورکړی شوی تر هغه پورې (جګړه ورسره وکړئ) چې مغلوب شي او د عاجزي په حالت کې جزيه ورکړي.

هر کله چې جهاد مطلق ذکر شي، همدا وروستی معنا ورڅخه مراد کيږي، ځکه د جهاد کلمه په همدې معنا کې اصطلاحي شهرت لري، خو په هغه صورت کې چې له دې معنا څخه اړوونکې قرينه (نښه) شتون ولري، بيا بيا د قرينې د غوښتنې مطابق معنا ورڅخه اخيستل کيږي.

**فعاليت**

له نفس، شيطان او باندينې دښمن سره جهاد کول يو له بل سره څه تړاو لري؟

**د مجاهدينو په برياليتوب کې د ځان جوړونې رول**

په مورچلو کې د مجاهدينو د برياليتوب بنسټيز ټکی له نفس او نفساني غوښتنو سره جهاد دی، هغه داسې چې څوک د خدایﷻ په لار کې جنګيږي او خلک د خدایﷻ دين ته رابولي، څه چې وايي هغه به په عمل کې پلي کوي، د هر څه نه وړاندې به د خپل نفس

د جوړولو کوښښ کوي، وروسته بيا له نورو سره مرستې ته لاس غځوي. په همدې خاطر رسول اللهﷺ فرمايي: «الْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِي اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ»

**ژباړه:** مجاهد هغه څوک دی چې د خدایﷻ په لار کې له خپل نفس سره جهاد وکړي.

انسان د ټولنې يو جز دی، ټولنه له وګړو څخه جوړه شوې، نو هر څوک چې د جهاد د فريضې په ترسره کولو کې د هر څه نه لومړی د خپل ځان څخه پيل وکړي، ځان جوړ او اصلاح کړي، پرته له شکه دا ټولنه به له داسې پاکو وګړو څخه جوړه شي چې هيڅوک به يې د مقابلې ځواک ونه لري. نو په لنډ ډول ويلای شو، هر هغه څوک چې په جهاد اکبر کې بريالی شو، دا تن به ضرور په جهاد اصغر کې بريالی کيږي. که څوک په جهاد اصغرکې پاتې راغی جهاد اکبر کې يې بريالیتوب ناشونی دی، خو په ډېرو لږو حالاتو کې به څه مخ په وړاندې لاړ شي، خو پايلې ته رسېدل محال دي.



## پوښتنې

١- د خدایﷻ په لار کې جهاد په څو جبهو کې ترسره کيږي؟ نومونه يې واخلئ.

٢- د دعوت او جهاد لپاره له قرآن کريم څخه يو دليل ذکر کړئ.

٣- د ښوونې د جهاد لپاره له قرآن کريم او حديثونو څخه يو يو دليل ذکر کړئ.

٤- مسلحانه جهاد شرح کړئ.

٥- سياسي جهاد څه مفهوم لري؟

٦- د خپل ځان جوړول د مجاهدينو په بريالیتوب کې څه رول لري؟



## کورنۍ دنده

د خپل ځان جوړولو او د خپل نفس د روزنې د ارزښت په اړه يوه لنډه مقاله وليکئ.

# سوله او احکام يې

دا مو ولوستل چې په اسلام کې جګړې د ډېر لوړ هدف په خاطر چې هغه د فکر او عقيدې ازادي ده ترسره کيږي،ترڅو انسانيت ته د کمال لارې پرانيستل شي. ددې لپاره نه کيږي چې ځمکې لاندې، انسانان غلامان او د ځمکې لاندې او باندې زېرمې ترلاسه کړي. هرکله چې سولې ته د تګ اړتيا محسوس شي، نو هغه بې پامه نه غورځول کېږي، ځکه سوله اساس او بنسټ دی، جګړه استثنايي حالت دی، قرآن کريم په دې هکله فرمايي: ﴿وَإِن جَنَحُواْ لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ [الانفال: ٦١].

**ژباړه:** که چېرته هغوی سولې ته مايل شول، ته هم خپل ميلان ښکاره کړه، په الله ﷻ توکل وکړه، بېشکه خدای ﷻ اورېدونکی او پوه دی.

**د مسلمانانو ترمنځ سوله**

ځينې وخت د مسلمانانو ترمنځ هم جګړه پېښيږي چې په دې حالت کې بايد سوله وشي، قرآن کريم په دې هکله فرمايي: ﴿وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ فَإِن فَاءتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ﴾ [الحجرات: ١٠]

**ژباړه:** هرکله چې د مسلمانانو دوه ډلې سره په جګړه شي، د دوی ترمنځ سوله وکړئ، که يوه پربله ظلم او تېری کوي (او سوله نه مني)، هغه ډله چې ظلم او تېری کوي ،په مقابل کې يې ترهغه وخته وجنګيږئ چې سوله ومني او د خدای ﷻ حکم ته غاړه کيږدي، بيا د دوی ترمنځ عادلانه سوله وکړئ (له شرايطو سره سم)، له عدالت څخه کار واخلئ، ځکه چې الله ﷻ عادلان خوښوي. نو کله چې دوه ډلې په خپل منځ کې په جګړه شوې، وطن او ملت له داخلي اختلافاتو، خطر او تجزيې سره مخامخ کړي، بايد چې د اسلامي او ملي يووالي لپاره حساب ته کش شي او په هر قيمت چې وي پر وطن او ملت کې بايد يووالی ټينګ شي. دا هغه لارښوونې دي چې قرآن کريم يې مونږ ته را زده کوي.

**فعالیت**

قرآن کریم فرمايي: ″و الصلح خیر″ د سولې په ګټو وغږېږئ.




۱- قران کریم د سولې په هکله څه فرمايلي دي؟

۲- که د مسلمانانو یو ټولی په بل ټولي حمله وکړي او سوله هم ونه شي، نو څه معامله باید ورسره وشي؟خبرې پرې وکړئ.



**کورنۍ دنده**

په ټولنه کې د سولې د ارزښت، پرمختګ او د هغې د رول په اړه یوه لنډه مقاله ولیکئ.

# د ذمي عقد (تړون)

د عزتمن او سوکاله ژوندانه لپاره ارزښتناکه لاره چې د متقابل احترام او حقوقو رعایت پـه کـې وشي د ذمي عقد دی، په دې لوست کې به ورسره اشنا شئ.

ذمه په لغت کې عهد او تړون ته وايي. اهل ذمه هغه کسان دي چې اسلامي حکومت ته د جزيې (ماليي) په نامه ديوې اندازې مال په ورکولو سره د دوی ځان، مال او حقونه خوندي کيږي.

**د اهل ذمه حقونه**

ټول ذميان هغه حقونه لري کوم چې مسلمانان يې لري. حضرت علي کرم الله وجهه په دې هکلـه داسې فرمايي: "دوی (ذميانو) ددې لپاره جزيه منلې چې د دوی مالونه او وينـې داسـې شـي، لکـه زموږ مالونه او وينې"

اسلامي دولت مکلف دی چې له دوی څخه هر ډول ظلم دفع کړي، د دوی ځان او مال وساتي، د دوی عقيدې او عبادت ځايونو پورې غرض ونکړي، د کسب او کار زمينه ورته برابره کړي.

**د ذمي حقونه له منځه وړل حرام دي**

ذمي ته د ضرر رسولو په هکله رسول اللهﷺ په سختو ټکو داسې بيان کړی، فرمايي: « أَلاَ مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا أَوِ انْتَقَصَهُ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» تاسـې خبر شئ هر هغه څوک چې په ذمي ظلم وکړي، يا په ناحقه دده حق وخوري، يا يـې پـه داسـې کار وګوماري چې هغه دده د طاقت څخه پورته وي، يا دده د خوښې پرته ورڅخه شی واخلـي، د قيامت په ورځ زه خپله د دوی مدعي يم)

**جزيه څه شی ده؟**

جزيه له هغه مال څخه عبارت ده چې ذميان يې اسلامي دولت تـه ورکـوي، ددې پـه مقابـل کـې اسـلامي حکومت دوی ته امکانات او سهولتونه برابروي، د دوی ساتنه کوي، د جنګ نه معاف دي، دا هم بايـد لـه ياده ونه ايستل شي چې په ماشومانو، ښځو، ليونو، عمر خوړلو او ړندو باندې جزيه نشته.




۱ـ ذمه څه شی ده او اهل ذمه کوم کسان دي؟

۲ـ د اهل ذمه حقونه بيان کړئ.

۳ـ آيا جزيه باج اخيستنه ده که په مقابل کې يې ذميان عوض تر لاسه کوي؟ روښانه يې کړئ.